د - خَرَاجُ الأَرْضِ التِي غَنِمَهَا الْمُسْلِمُونَ ، سَوَاءٌ اعْتُبِرَتْ وَقْفًا أَمْ غَيْرَ وَقْفٍ.

هـ - خُمُسُ الكُنُوزِ التِي لَمْ يُعْلَمْ صَاحِبُهَا ، أَوْ تَطَاوَلَ عَلَيْهَا الزّمَنُ.

و - خُمُسُ الخَارِجِ مِنَ الأَرْضِ مِنْ مَعْدِنٍ أَوْ نفْطٍ أَوْ نَحْوِ ذَلِكَ. وَقِيلَ: مَا يُؤْخَذُ مِنْ ذَلِكَ هُوَ زَكَاةٌ مِقْدَارُهَا رُبُعُ الْعُشْرِ ، وَيُصْرَفُ فِي مَصَارِفِ الزّكَاةِ.

ز - مَالُ مَنْ مَاتَ بِلا وَارِثٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ، وَمِنْ ذَلِكَ دِيَتُهُ.

ح - الضّرَائِبُ الْمُوَظّفَةُ عَلَى الرّعِيّةِ ، التِي لَمْ تُوَظّفْ لِغَرَضٍ مُعَيّنٍ.

ط - الْهَدَايَا إِلَى الْقُضَاةِ وَالْعُمّالِ وَالإِمَامِ.

ى - أَمْوَالُ الْبَيْتِ السّابِقِ عَلَى قَوْلِ غَيْرِ الحَنَفِيّةِ.

---

دبيت المال دځلوروخونواوپه ځلورو برخو دويشلو موضوع داحنافو دنوروكتابونوترڅنګ دادی لاندې عبارت كې بحرالرايق هم بحث كړي ،چې جنساًمو ددې شرح عبارت رانقل كړ:

ثم اعلم أن أموال بيت المال أربعة: أحدها ما ذكرناه. الثاني الزكاة والعشر ومصرفهما ما بين في باب المصرف من الزكاة. الثالث خمس الغنائم وقد تقدم مصرفه في كتاب السير. والرابع اللقطات والتركات التي لا وارث لها وديات مقتول لا ولي له ولم يذكره المصنف. قالوا: مصرفه اللقيط الفقير والفقراء الذين لا أولياء لهم يعطون منه نفقتهم وأدويتهم ويكفن به موتاهم ويعقل به جنايتهم، وعلى الامام أن يجعل لكل نوع من هذه الانواع بيتا يخصه فلا يخلط بعضه ببعض لان لكل نوع حكما يختص به، فإن لم يكن في بعضها شئ فللامام أن يستقرض عليه من النوع الآخر ويصرفه إلى أهل ذلك،

البحرالرايق /ج١١ص٣٣٢

# دحُوَیصَۃ بن مسعود رضي الله عنه ایمان راوړل :

دکعب بن اشرف دقتل وروسته ، رسول الله (ﷺ) صحابه ووته حکم وکړ، هرځای چې داسي خلک په لاس درشي ، هغوئ ووژنئ ! په دط سره دحویصة بن مسعود کشر ورور محیصة بن مسعود د"ابن سبینه " په نوم یو یهودي سوداګر قتل کړ، هغه دمحیصة بن مسعود او دمدینې له نورو خلکو سره دوستانه او ملګرتیا وه.

حویصة اردغه وخت مسلمان شوی نه و ،خومحیصة مسلمان شوی و، حویصة په عمر کې له هغه مشر و، له دې وجې هغه محیصه ونیو ،په وهلو ،وهلو کې یې ،هغه ته وویل:

دالله دښمنه! تاهغه ولې وواژه ؟ تاته دا نده معلومه چې ستا په خیټه کې دهغه دمال څومره غوړ شته ؟

محیصة وویل: والله لقد اَمرنِی بقتله لو اَمرنِی بقتلک لضَرَبتُ عُنُقک

په خدای سو ګند! ماته دهغه دوژلو حکم داسي ذات کړیی، که هغه ستا د وژلو حکم هم وکړ، په الله قسم چې ستا سر به هم ستا له تنې پریک کړم .

حویصة ددې په اوریدو وویل: الله لو آمر کَ محمد بقتلی لقتلتنی؟

په خدای قسم !که تاته محمد ځما دوژلو حکم وکړي ته به ما هم ووژني؟

محصیه وویل: نَعم والله لو آمرني بضَربِ عُنقِک لَضَربتُها

هو! په الله سو گند که ما ته هغه ستا دسر پريکو لو حکم وکړي زه به خامخا تانه سر پريکوم

يعني درسول الله (ﷺ) دحکم وروسته د وړې زرې اومره هم ستا دورورولی فکر به ونکړم، حويصه ددې ځواب په اوريدو حيران شو ،ناڅاپه دهغه له خولې ووتل :

په خدای سوگند دی، دا دين خامخا حق دی، چې دخلکو زړو ته دومره ننوزي چې دبدن ټولو رگونو ته سرايت کوي، له دې وروسته حويصة درسول الله (ﷺ) ته ورغی او د زړه نه يې اسلام قبول کړ.

دزيد بن حارثه (رضي الله عنه) سريه :

دبدر وروسته قريش له مسلمانانو دومره مرعوب وډارشول، چې دسوداګرۍ لپاره يې دشام لوری ترک کړ، دعراق لاره يې غوره کړه، دلارې درهبر په توګه يې "فرات بن حيان العجلی" په اجرت ونيو او ځان سره يې بو ته، دسوداګرۍ يوه قافله له مکې نه دعراق په لور وخوځيده، قافله کې پريمانه مالونه باروو، دقريشو په سردارانو کې ابوسفيان بن حرب، صفوان بن اميه، حويطب بن عبد العزی اوعبد الله بن ربيعة هم وو، (دمکې دفتح په مهال دغه څلور واړه په سلام مشرف شوي رضي الله عنهم)

رسول الله (ﷺ) ته اطلاع ورغله، دزيدبن حارثه (رضي الله عنه) په مشرۍ سل صحابه يې پسې وليږل، علامه ابن سعد(رحمه الله) ليکلي:دزيد بن حارثه (رضي الله عنه) سريه "القردهؤ سيمې لورته، دهجرت په ۲۸مه مياشت ،جمادی الآخر ليږل شوې، اودا هغه لومړۍ سريه ده چې زيد بن حارثه رضي الله عنه پکې دامير په توګه ګومارل شوی، "القرده" دنجد خاوره کې دا"لزبده" او "الغمره" ترمنځ د "ذات عرق" په خوا کې ديوې ځايې سيمې نوم دی.(طبقات ابن سعد ۲۲۷مخ)

صحابه چې هلته ورسيدل، هغوئ دقافلې په لاندې کې کامياب شول، خو دقافلې دسر خلک ټول وتښتيدل، البته فرات بن حيان العجلی يې ونيو او ځانو سره يې مدينې منورې ته راوست، په غنيمت کې يې دومره زيات مالونه زيات ونيول، چې يوآځې خمس يې (شل زره درهم ووت، دعلامه ابن سعد په قول : صحابه وو ټول غنيمت رسول الله (ﷺ) ته راوړ، رسول الله (ﷺ) په پنځو برخو وويشه، پنځمه برخه يې ترې وويسته، يوه برخه شل زره درهم شوه، پاته څلور برخې رسول الله (ﷺ) د سري په مجاهدينو وويشلې

د ابن سعد په روايت : رسول الله (ﷺ) فرات بن حيان العجلی ته وويل: که ته اسلام راوړې ،ته به پريښودل شې، هغه اسلام راوړ، رسو ل الله (ﷺ) هغه ته ښښنه وکړه.

دابو رافع وژل :

ابورافع دیهودو یولوی شتمن و، ابورافع دهغه کنیت و او نوم یې عبد الله بن ابی الحقیق و، ځینو یې نوم سلام بن ابی الحقیق نقل کړی .خیبر ته څېرمه یوه بانډه کې اوسیده،

د کعب بن اشرف وژونکی غازي صحابي "محمدبن مسلمه" او دهغه ملګرې ټول داوس قبیلې وو، په دېسره خزرج قبیلې خلکو ته "غبته" راغله ، چې اوسیانو درسول الله (ﷺ) یوډېر لوی دښمن او ګستاخ "کعب بن اشرف" په ژلو ستر ویاړ ترلاسو کړ، مونږ ته هم پکاردی چې درسول الله (ﷺ) د یوبل دښمن (ابورافع) په وژلو سره ځانونه درسول الله (ﷺ) ته سرخ رویه ثابت کړو، دې لپاره هغوئ رسول الله (ﷺ) ته ورغلل، څو ترې دابو رافع وژلو اجازه واخلي، رسول الله (ﷺ)اجازه ورکړه( فتح الباری ۷ټوک ۴۶۲)

عبد الله بن عتیک، مسعودبن سنان، عبد الله بن انیس، ابوقتاده بن حارث بن ربعی، اوخزاعی بن اسود (رضي الله عنهم) دې کارته تیار شول، عبد الله عتیک (رضي الله عنه) دهغوئ لپاره امیر غوره شو، رسول الله (ﷺ) ورته تاکید وکړ، پام چې دهیڅا ماشومان اومیرمنې ونه وژنئ!!

د امام طبری قول دی، چې دهجرت په درېیم کال، جمادی الاخر کې عبد الله بن عتیک خپلو ملګرو سره یوځای روان شو، ابن سعد وایي:چې ابورافع په ۶ کال رمضان کې اوځني نور وایي: دهجرت په ۵ کال ذی الحج کې،په یوبلروایت په ۴ کال، بل وایي: ۳ کال په رجب میاشت کې، امام بخاری رحمه الله، په صحیح بخارې کې له زهري نه روایت کړی چې ابو رافع د کعب بن اشرف دقتل وروسته ووژل شو (فتح الباری ۷ټوک ۴۶۲مخ) مونږ دلته د امام بخارې په روایت د استنادله مخې دابورافع قتل واقعه د کعب بن اشرف له وژل کیدو وروسته راوړه.

په صحیح بخارې کې له براء بن عازب (رضي الله عنه) نه روایت دی: دلمر پریوتو وروسته کله خلکو خپل څاروي دځرولو وروسته بیر ته بیول، عبد الله بن عتیک (رضي الله عنه) او دهغه ملګري خیبر ته څیرمه ورسیدل، هغوئ چې کله دابورافع کلاته نېږدې شول، عبد الله بن عتیک (رضي الله عنه) ملګروته وویل: تاسي هم دلته کینئ، زه د ننه کلاته دننوتو څه تدبیر جوړوم.

هغه دروازې ته چې پوره نیږدې ورغی، مخ یې په څه پټ کړ، داسي کیناست لکه قضاءِ حاجت ته ناست وي! د کلا په دروازه کې ولاړ پهره دار داسي وفهموله چې زمونږ څوک دی ورنارې یې کړ :

اې دالله بنده ژر شه، دروازه بندوم.

زه سملاسي کلاته ننوتم، ژر یو طرف ته پټ کیناستم، ابورافع بالاخانه کې اوسید، دشپې ترڅه وخته کیسه کوونکو کیسې وکړی، بیا دهغوئ مجلس پای ته ورسید، هرڅوک خپلو کورونو ته لاړل،پهره دار دروازه بنده کړه او د کیلې ګانو غوټه یې زوړنده کړه

هغه چې ویده شو، زه پورته شوم د کیلې ګانو غوټه مې را واخسته لاړم دروازه مې بیرته کړه، بالاخانې ته پورته شوم، کومه دروازه چې ما خلاصه کړه هغه مې ځان پسې ددې لپاره بنده کړه، هسې نه څوک رانشي، څو خلک خبرېږي اورازي چې ما خپل کار کړی وي

بالاخانې ته لاړم، ماته نه معلومیده چې هغه چېرته دی، تیاره وه، ابو رافع دخپل له اهل وعیال سره و، ما غږ وکړ ابو رافع! ابورافع! ابو رافع وویل: څوک یې، ما د هغه د غږ پسې په ورخطایې منډې کړل، تلو کې تلو کې مې دتورې ګذار وکړ، مګر خالې لاړ، ابورافع چیغه کړه! لږ وروسته مې خپل غږ څه بدل کړ او دهمدردۍ په لهجه مې وویل: ابو رافع داغږ دڅه و؟ ابو رافع وویل: اوس په ماچا دتورې ګذار وکړ.

دې سره مې په هغه دویم ګذار وکړ، په وجه یې هغه ژورټپي شو، بیامې دتورې تیره څو که دهغه په خېټه کېښوده اوبل خوا ترې وویسته، پوشوم چې نور هغه مړ دی، ساه یکې پاتې نده، روان شوم یوه، دروازه مې خلاصه کړه، کله چې په پوړۍ رابښکته کیدم ذماخیال داراغی چې زمکې ته ورسیدم، دې کې را پریوتم، دپونډۍ هډوکی مې مات شو، ژرمې د سپوږمۍ رڼا ته پخپله پګړې وتړله، بیاخپلو ملکروته راغلم، هغوئ ته مې وویل:

تاسي درځئ! رسول الله (ﷺ) ته دهغه دمرګ زیری ور رسوئ، زه هم دلته کینم، څو دهغه دمرګ اعلان واورم بیا درزم، سهار شو چرګ اذان وکړ، دکلا له دیوال نه دابورافع دمرګ اعلان وشو، بیا را روان شوم، ملګرو سره یوځای شوم، هغوئ ته مې ویل: تیز درومئ، الله ابورافع مړ کړ، راغلو رسول الله (ﷺ) ته موزیری ورساو، څه چې تیر وو، هغو ټولو نه مو خبر کړ، رسول الله (ﷺ) وویل:

ته دې پښه وغځوه! ما هغه وغځوله، رسول الله (ﷺ) وربانده خپل مبارک لاس تیر کړ داسې ښکاریده لکه چې هیڅ درد نه و. (بخاری باب قتل ابی رافع فتح الباری قتل ابی رافع البدایه والنهایه ۴ټوک ۱۳۶مخ)

نوربیا

محمود احمد نوید

# خلع هویت چرا ؟؟

چندیست که موضوع مندرجات در تذکره های جدید (و به اصطلاح الکترونیکي) تبدیل به مباحث جدّی و داغ رسانه ها و شبکه های خبری گشته است ؛ از آنجا که در عصرحاضر کارت هویت و یا همان تذکره ، معرّف یک شخص حقیقي هست و در اصطلاح امروزی شاخص ترین مدرک شناسایي افراد به لحاظ دین ، ملیت ، نژاد ، لسان و کشور همان یک قطعه کارتي است که از آن به عنوان تذکره یاد مي شود و از لحاظ معنوی ، اهمیت فوق العاده داشته و مندرجات داخل آن ، بیانگر شخصیت صاحب آن است ؛ و نیز از آنجا که دشمنان از دیر باز در پوشش پلان های مختلف در صدد بي هویت کردن مسلمانان بوده و همچنان در تلاش هستند ؛ امروزه اما ، دشمنان بطور علني و آشکار از جوّ حاکم در فضای سیاسي کشور ، سوء استفاده نموده و نسبت به گذاشته گام های موثرتری ، علیه هویت کشي برداشته اند و تا حدود زیادی با تبلیغات زهرآگین خود ، افراد بسیاری را فریب داده و برای بیگانه ساختن ملت افغان از هویت و افتخارات ارزشمند ، از ابزار گوناگون استفاده نموده و چنان وانمود کرده و مي کنند که انجام این کار (یعني جعل هویت اصیل و یا سلب آن) سبب خیر ، صلح ، وحدت و اتحاد شده و کلماتي همچون "دین ، افغان و تخلص" موجبات تفرقه و اختلاف بین قومیت ها و ملیت های مختلف ساکن در کشور مي شوند ؛ فلذا با بي شرمي تمام ، توسط یکعده افغان نماهای گمراه و وطنفروش ، بسیار کوشش مي کنند که این کلمات را از هویت نامه و یا تذکره افغان ها دور نمایند !؟!

ولي واقعا چرا دشمنان در صدد خلع هویت ما مسلمانانست ؛ آیا بهترین مدرک یک مسلمان کلمه مقدسه لا اله الا الله و محمد رسول الله نیست ؟

آیا یک مسلمان جز دین اسلام دیگر هویتي دارد و یا مي تواند داشته باشد ؟

**آیا ضمیر و وجدان بیدار و آگاه یک مومن این را قبول کرده مي تواند که خود را برای دیگران بنامي غیر از اسلام معرفي نماید ؟**

**آیا ما در وطن عزیز خود افغانستان به جز "مسلمان افغان" دیگر هویتي مي توانیم پسند کنیم ؟**

**آیا مگر دشمنان نمي دانند که همه هویت ما یک کلمه و آن هم "اسلام" است و بعد از اسلام ، دنیا ما را فقط به یک اسم و آن هم "افغان" مي شناسد ؛ اگر در معرفي نامه یک افغان واقعي و مسلمان ، کلمه دین و افغان سلب شود دیگر چه مي ماند که با آن معرفي بشود ؟؟؟**

**راستي ! دشمنان از خلع هویت ما چه سودی مي برند ؟**

**واقعیت اینست که غرض نهایي و هدف اصلي دشمنان ، از طرح و اجرای انواع پلان های ظالمانه و مصارف مالي و جاني گزافي که برای تباهي مسلمین و خلع هویت شان بکار مي برند ؛ تنها همین است که مسلمانان را از دین بي دین نموده و از هویت اصلي و پرافتخارشان جدا نمایند ؛ و آنها را تا مي توانند از افتخارات واقعي و ارزشمندشان دور نگاه دارند ؛ چه اینکه هراندازه که مسلمانان از هویت شان دور بشوند به همان میزان ، به سمت اغراض و منویات شوم و شیطاني دشمنان گرایش پیدا کرده و نزدیک مي شوند و خلاصه به مرور زمان از همه داشته های با ارزش و افتخارات ناب خود جدا مي افتند !**

**دشمنان اسلام بعد از تصاحب و اشغال سرزمین افغانستان ، همواره در طول دوران اشغال ، کوشیده اند که از ملت افغان ، سلب هویت کنند ؛ و اینک اما ، در صدد اجراء کردن پروسه های شوم خویش هستند و مي خواهند با بي اهمیت نشان دادن موضوع حذف کلمات دین و افغان ، از تذکره های هموطنان عزیز ، هویت افغان ها را نیز اشغال و تصاحب کنند و همانطور که یکتعداد افغان نماهای وطنفروش ، وطن را دودستي به دشمنان فروختند امروزه از طریق همان افراد عنقریب است هویت و حیثیت افغانها نیز بفروش برسند و دیگر هیچ چیز برای ملت شریف افغان باقي نگذارند ؛ ولي مگر مي شود یک مسلمان افغان را از تمام هویتش که همان اسلام و افغانیت است جدا کرد ؟؟؟**

**ما نه براساس اختلاف و تفرقه خود را مسلمان افغان مي خوانیم بلکه براساس این حکم ازلي قرآن شریف که مي فرماید : " ... وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا ..." (۱۳ حجرات) خاص برای معرفت و شناخت ، هویت خود را اینگونه بیان مي کنیم ، غرض اصلي از مندرجات "دین و افغان" در تذکره ، بخاطر اینست که دنیا ما را ، قبل از هرچیزی به عنوان دیندار و ملیت دار بشناسد و در صورت عدم ذکر این دو کلمه ، مردم دنیا از کجا بفهمند که ما اهل دینیم و یا بي دین ، افغانیم و یا غیر ؟ و آیا واقعا کلمه های مثل دین و افغان ، تا این حد آزار دهنده اند که یکتعداد افغان**

نماهای وطنفروش (با هدایت و دستور مستقیم اربابان خارجي خود) دنبال هویت فروشي هستند و مي خواهند همه هویت ما را از ما بگیرند؟

آنطوری که بسیاری ها مغلطه مي کنند ؛ و کلمه افغان را منحصر در یک قوم خاص مي پندارند واقعا در حق این کلمه جامع ، اجحاف روا مي دارند ؛ چرا که این کلمه مُخَفّف "افغانستان" نام زیبای وطن ماست ، کدام افغاني حالا از هر نژاد و لساني با کلمه افغانستان تعصب مي ورزد ؟ اقوام مختلف ساکن در کشور ، همه مال یک آب و خاک مشترک هستند اگر پشتون اند یا تاجیک ، ازبیک اند یاهزاره ، بلوچ اند یا ترکمن و . . . از یک چمَن ، منتها با گلهای متنوع هستند که در کنار هم ، افغانستان واحد را تشکیل مي دهند ؛ و دنیای خارج آنها را به عنوان "افغاني" مي شناسد ؛ همانطور که این مسئله ، در بسیاری از نقاط مختلف دنیا و کشورهای جهان با آنکه در داخل خود ، (آن کشورها) متشکل از اقوام و گروهای مختلف فکری و مذهبي هستند ؛ در بیرون اما با نام مخفف کشورهای شان یاد شده ؛ و یک امر عادی و رایج تلقي مي شود و هیچ مشکلي هم ندارند ؛ چراکه مشخصات مندرج در تذکره و یا همان کارت هویت و نیز بیرق یک سرزمین جزو شعایر و افتخارات یک کشور محسوب مي شوند ؛ و هرکسي در دنیا ، به داشته های باارزش خود افتخار کرده و عشق مي ورزد ؛ اما که متاسفانه این روزها در افغانستان ، فریب خورده های داخلي زیر نام "مشرانو جرگه" و غیره در کشور عزیز ، (و مخصوصا) برای جلب توجه و خرسندی کفار ، یهود و نصارای ، در تلاش تحریف و تشویه هویت ملي افغانها هستند ؛ و اگر کسي با آنها به مخالفت برخیزد و بخواهد از هویت و خاک خود شرافتمندانه دفاع کند ؛ بلافاصله تهمت های ناروا به وی وارد نموده و مارک جاسوسي و بیگانه پرستي مي زنند ! . . .

چه زیبا گفته علامه اقبال – رحمه الله – :

خـــــــــــداآن ملتـــــــــــــي را ســـــــــــروری داد
کـــــــــه تقـــــــــدیرش بدســـــــــت خـــــــــویش بنوشـــــــــت

بـــــــــه آن ملـــــــــت ســـــــــروکاری نـــــــــدارد
کـــــــــه دهقـــــــــانش بـــــــــرای دیگـــــــــران کشـــــــــت

# امریکا او ځیني پخواني رهبران

جمال الدین ادیب

د څلورمې هجري پېړۍ نیمایي کې چې اندلس کې د امویانو خلافت ونړېد، ځای یې ملوک الطوائف ته پاتې شو. د اندلس په هر ښار یوه کورنۍ حاکمه شوه او هرې کورنۍ جلا جلا حکومتونه جوړ کړل. په اندلس کې د امویانو خلافت د نړۍ په تاریخ کې د اسلام د واکمنۍ هغه بې بېلګې ورځې دي، چې ننی بې خرته پر مختللی لویدیځ یې هم پوروړی دی.

د اسلام په مفتوحه زمکو کې د اسلام دغسې بېلګه نظام او واکمني یا د خلافت نړېدو پسې سمدستي بې بېلګې ملوک الطوائفي چې تر ننه یې د نړۍ هر اختلاف شا ته پرې ایښی، ان د اروپا د تور تاریخ د منځیو میلادي پېړیو تبعیضي نظامونه هم ور ونه رسېدل!

په دغو ملوکو کې د اشبېلیې د ښار مالک قاضي عباد و، چې په اشبېلیه کې د عامري دولت قاضي و. ده "آل عباد" کورنۍ په اشبېلیه حاکمه کړه او له شاوخوا نورو ملوکو سره یې د یو او بل په

وهلو کې څه توپیر نه درلود. قاضي عباد چلي حاکم و، علماء او پوهان يې پر ځان راټول کړي وو، چل يې په دې کې و، چې ظاهرا يې خپل ملوکیت ته دشوراییي نظام رنګ ورکړی و.

عباد خبر و، چې د عامري دولت په عروج کې د اموي کورنۍ یو نظربند غړی (هشام المؤيد) له خپل قصره تښتېدلی و او ځان يې پټ کړی و. ده کوښښ کاوه چې هشام پیدا کړي او د اندلس د خلکو زړونه په دې وګټي چې د دوی امیر المؤمنین يې پیدا کړ او بېرته یې امویان حاکمان کړل. دا چې هغه یو سر او دوه غوږه دی، نو د همدې عباد کورنۍ په واک کې به وي او په دې بهانه به يې د خلکو له ستر ګو پنا وساتي چې د ده ژوند په خطر کې دی، ګویا مستقیما به يې خلکو سره اړیکه نه وي او عباد کورنۍ به يې د ولسونو د راپورته کېدو له خطره په امان وي.

همداسې یو څه وشول چې د اشبېلیې په ښار کې يې د پوزیو یو تاجر "خلف الحُصَري" هشام سره د مشابهت په دعوه ونیو او د اشبېلیې قصر ته يې راوست. خلف تر مرګه له دې منکر و، چې دی هشام دی، خو عباد کورنۍ ورته ویل ته هشام یې. بېل قصر، وینځې، ځانګړی ګارد یې ورکړ او د امارة لباس يې ورواغوست. تاریخ لیکونکو نوموړی داسې لېونتوری انسان ښوولی، دلیل يې دا ښيي چې دی ښه خبر و، چې هشام نه دی، خو بیا يې هم ځان باندې د "امیر المؤمنین" ګومان کاوه.

خلف چې په لومړي ځل قصر ولید، فکر يې کاوه چې زه جنت ته راغلی یم، خو چې ځان به يې وپوښته چې مرګ څه شو؟ سوال به يې بېرته خپله ځواب کړ، چې ګوندې په ناڅاپي مرګ مړ شوی دی!! د ده په احوالو کې راځي چې کله کله به يې ځان رښتیانی امیر المؤمنین باله او د یو څه په اړه به يې د اجرآتو غوښتنه کوله، خو چې کله به ورته د قاضي عباد وزیرانو د ده حقیقت ورپه یاد کړ، ځان ته به متوجه شو.

عبادیانو دی یوه ورځ د اشبېلیې ښار ته راوویست او اعلان یې وکړ چې هشام مو پیدا کړ او دا دی پر تخت بېرته کېناست. د عبادیانو موخه دا وه، چې د اندلس د نورو ښارونو د ملوکو د خلافة او امارة د اعلان مخه ونیسي او ځان ته یو ډول مشروعیت ورکړي، چې تر یوه ځایه کامیاب هم شول.

عبادیانو خلف ته ویلي وو، که څوک دربانډې پوه شول چې ته هشام نه يې یا دې دا هڅه وکړه چې خلک راوپاروې په همغه ورځ به نه يې. دی چې یو وخت په قصر کې سخت تنګ شو، غوښته يې چکر ته ووځي، اصرار یې وکړ، پایله دا شوه چې اصرار يې په مرګ تمام شو او مړی يې بې جنازې خښ شو.

په افغانستان کې اوسنی نا مشروع دولت هم د امریکایانو د پلان مطابق ځینې پخواني رهبران د خلف حُصَري غوندې استعمالوي. امریکایان یوازې دا نه چې د دوی په مرسته له مرګ و ژوبلې په امن نه شول، بلکې د دې رهبرانو رول یې په خپله ملګر تیا صفر ته راټیټ کړ. دوی یوازې د همدې رهبرانو زیره خواره رام کړل، خو دا یې ونه شوه کړای چې ملت د دوی په خبره او استدلال قانع کړي. ځینې پخواني رهبران به د حصري په څېر کله کله پر ځان د رښتیانیو جهادي مشرانو ګومان کوي، خو دې ته به یې پام نه وي، چې مسلمان فدایان یې په وژلو کې جنت لټوي.

هغه تېره ورځ چې حضرت حُصَري مجددي په لویه جرګه کې پر ځان کوم ګومان کاوه، له یوې خندوونکې مسخرې یې پورته څه زور نه لاره. ده ته ځان په جرګه کې د ټول افغانستان روحاني پلار ښکارېده، ځکه خو یې کرزي ته اخطار ورکاوه، که سند نه امضاء کوې، نو زه هجرت کوم!! دی فکر کوي، که زه هجرت وکړم، ټول افغانستان به ما سره هجرت وکړي او کرزی به یوازې پاتې شي!

ده هجرت (فرار) وکړ، خو چا پرې غوږ هم ونه ګراوه. د ده د تېښتې اصل لامل دی په خپله نه دی، بلکې د ده کورنۍ ده. د افغانستان د پردي پالو تجارانو او د کرزي د ادارې د نامؤمنو منسوبینو په څېر پر دوی هم د ۲۰۱۴ خپسه ناسته ده، نو ځکه یې کورنۍ غوښته چې د امریکایانو له ۲۰۱۴ مخکې خپله له افغانستانه ووځي. دوی چې متعیش او سهولت طلبه دي، نو مخکې له مخکې یې په غرب کې د خپل تعیش غم وخوړ، خو زما په فکر دی به اوس هم خپلې خپلخانې په دې نه وي پوه کړی، چې موږ ولې راووتو؟ اوس به هم ده ته وایي چې د افغانستان خلک ډېر درپسې خپه دي او کرزي ته ستا راوتو ډېر تاوان وکړ، ګویا دی له امریکایانو مخکې د خپل کور "حُصَري" دی.

زما یو نږدې ملګري چې د اغا صیبانو له کورنۍ دی، کیسه راته کوله، ویل یې پلار مې مجددي ته مشوره ورکړه چې عمر دې خوړلی له دې کارونو لاس واخله او روحانیت ته متوجه شه، کوم خلیفه دې وروزه. وایي مجددي ځواب ورکړ: "به خدا اگه یک لحظه از کرزی گم شدم تمام افغانستان در برابرش قیام می کنه".

امریکایان د مشروعیت هیڅ پروا نه لري، یوازې دومره غواړي، چې د مشروعیت لفظ استعمال کړای شي، د همدې دندې لپاره یې دغه حُصَریان ساتلي، دوی پر ځان پوهیږي، چې رهبران نه دي، خو امریکایانو شکي کړي، چې ګوندې رښتیا هم هغه رهبري پاتې نه وي. دوی خپل ولس داسې ګڼي چې ګني بې حافظې دی، خو پام یې نه دی، چې د همدوی حافظې تاریخ تېرې دي، ځکه خو یې پام نه دی او ځکه خو یې د امریکایانو مصنوعي دلایل د کره دلایلو په توګه منلي.

امریکا سره د دې رهبرانو ارزښت تر دې اندازې دی، چې دا دی له دولسو کلونو وروسته یې د کرزي په اړه دا خواري لږ تر لږه پیل کړې، چې تېر اخري یې خپلواک او زړور انسان معرفي کړي، خو دوی یې د هغه ذلیل دریځ لپاره انتخاب کړي چې هیڅکله به یې تاریخ دیوه دراک او ځیرک رهبر په توګه څه چې د عام خپلواکي پېژاندانسان په توګه هم یاد نه کړي.

کرزی د یوې هوکړې په پایله کې امریکا سره د مخالفت تظاهر کوي، کوښښ کوي چې د خپل مداریتوب پر بنسټ ناندریېزه سیاسي فضا دیو څه وخت لپاره حاکمه وساتي او وښیي چې ګنې کرزی د افغانستان د ګټو پر سر امریکا سره وران دی. کرزی سره له دې چې د امریکا په زور او مټ پر افغانستان حاکم شو، خو بیا هم ښیي چې د افغان د ګټو خبره راځي، امریکا ته سر نه ټیټوي. پای ویلای شو؛ دی که څه هم آله ده، خو دومره اهمیت امریکا ته لري، چې افغانانو ته یې یو څه پت ورجوړوي، خو افسوس د کابل مېشتو پخوانیو رهبرانو په حال، چې د شرمساره دریځونو انتها یې هیڅ سر نه دی ټوکولای او لا هم په زړه بې لارۍ کې پراته دي!

دوی کې بیا ځینې جنابان کوښښ کوي چې د اسلام د لارې لښکریانو ته دین وروښیي. کله د یوې اسلام ضد څېرې فاتحه کې، کله د بل اسلام ضد سړي تلین کې له موقع استفاده کوي او د عَبادیانو د حُصَري غوندې مهمو قضایاو ته خوله اچوي! ستونزه دا نه ده، چې ولې مخالفت کوي؛ بلکې ستونزه دا ده، چې خپله یې اسلام پرې ایښی او بل ته یې د ورزده کولو کوښښ کوي.

شهید عبدالله عزام رحمه الله په "سقوط الخلافة" کتاب کې لیکي؛ د سید قطب رحمه الله د اعدام په ورځ حکومت د ازهر یو شیخ ته امر وکړ، چې د اعدام پر مهال سید قطب ته کلمة الشهادة تلقین کړي، هغه حُصَري هم ورته شروع وکړه: أشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمداً عبده ورسوله. سید قطب ورته وویل زه د دې کلمې لپاره مرم او ته پرې روزي ګټې، ته یې څنګه ما ته تلقینوې!!

همدغه حال د کابل مېشتو حُصَریانو دی. دوی د اسلام پر سر د یهودو زیرې خوري. د همدې لپاره یې چپنې وراغوستي چې د نصاراو د منځنیو تورو پېړیو د پاپانو په څېر د دین ټیکه واخلي. د همدې له امله یې د اسلامي احکامو د تفسیر او تشریح حق هم ځان ته ورکړی، د جهاد او نه جهاد اوامر هم په خپل لاس کې ګڼي، خو دوی نه پوهیږي، چې هغه څوک په اسلام نه دی پوه شوی چې لپاره یې نه شي قربانېدلای. دوی پخوا هم رفاه طلبي وو او نن هم دي. دا د اسلام پر سر زیره خواره د سید قطب پر استدلال څنګه هغه چا ته دین ښیي چې د دې دین د حاکمیت او بقاء لپاره لکه سپېلني لوګی کیږي!!

# دغازي آباد محترم ولسوال ملا عادل مورچل سره په مرکه کې :

## افغاني پرګنې داشغالګرو سره دتلپاتي میشتندنې ترون لاسلیکول دغلامې اداري لخوایو بزدلانه ګام او دیوه مسلمان اتل ملت دپلورلوسره مرادف بولي !




هیله ده چې په پیل کې دمورچل مجلې لوستونکیوته خپل ځان وروپیژنئ !

نحمده و نصلی علی رسوله الکریم . اما بعد!

فأعوذ بالله من الشیطن الرجیم بسم الله الرحمن الرحیم : قال تبارک و تعالی فی سورة الأنفال :

وَقَاتِلُوهُمْ حَتّٰى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلّٰه فَإِنِ انتَهَوْا فَإِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ .

زمانوم عادل اودننګرهارپه ولایت کې مې سترګې غړ ولې دي ، روحاني او علمي تربیت مې د والدمحترم په توسط دمسجد ملاامام څخه شروع، چې ناظره قرآن کریم مې ورڅخه ختم کړ، دروسانو او کمونستانو دظلم او ستم څخه مو د والد محترم تر نظرلاندې پاکستان ته هجرت وکړ، بیا مو خپلو زده کړوته د الهجرت والجهاد په مدرسه کښې دوام ورکړ. کله چې د ۹ ټولګي څخه فارغ شوم، چراټ کې مې دارالعلوم محمدیه کښې درې درجې کتابونه ولوستل . کله چې د افغانستان اسلامي امارت د شر او فساد په مقابل کښې په جهاد لاس پورې کړ، ماته هم دا مینه راپیدا شوه چې دخپلو شیوخو او طلباوو سره پدې کاروان کښې شریک شم ، دنیکه مرغه چې دننګرهار څخه یوه وفدکې دخوست ته لاړواو له هماغه ځایه مو دشهید مولوي احسان الله احسان په مشرۍ دشر و او فساد په مقابل کښې دجهاد لاره غوره کړه او دادی تر ننه ددې کاروان لاروی یم . له نیکه مرغه چې دتحریک په جهادي بهیر کې راته څه فرصت پیدا شواوخپل نیمګړې درسونه مې دجهادی مصروفیاتو ترڅنګ د درونټې په جهادي مدرسه کښې ولوستل اوهلته مې د فنونو تکمله وکړه، چې دموقوف علیه یا وړې دورې لپاره مې دمرحوم ګوږ آخندزاده رحمه الله سره داخله وکړه ،د سند ترلاسه کولو څخه وروسته بیا په جهادي کارونو تر پایه مصروف شوم ، افغانستان کې دښکیلاکي عسکرو په مقابل کښېمې دخپلو مشرانو دتوصیې او رهبرۍ سره سم متې راپورته کړې او په وسله وال جهاد مو لاس پورې کړ.

فی الحال هم دکنړ او نورستان په مربوطاتو کښې دغازی آباد ولسوالۍ د مجاهدینو د خادم په صفت د صلیبي او غلام دښمن په مقابل کې د الله جل جلاله نصرت او مدد په هیله په جهاد بوخت یم . د الله تعالی څخه غواړم چې دې راسپارل شوي خدمت کې راسره خپل مدد شامل کال کړي،همداسې د مورچل مجلې کار کونکو ته خپل سلامونه او احترامات وړاندې کوم او ددوئ څخه ډیر مشکور یم، چې مونږ ته یې وخت راکړ،تر څو د غازي آباد ولسوالۍ په جهادي بهیر لوستونکي خبر کړو .

۱- پوښتنه :که دغازي آبادولسوالۍ دجهادي اوپوځي حاله که لوستونکي خبر کړئ ممنون به شو؟

ځواب : لله الحمد د غازی آباد ولسوالۍ جهادي حالت د ډاډ وړ دی او مجاهدین په لوړه روحیه ددښمن مقابلې ته چمتو دي ،دا ولسوالي په لوړ زیات تعداد کې مجاهدین

لري، چې د دښمن په فريبونو او دسيسو ډير ښه پوهيږي، په خپل قوي عزم او پوره ايمانداری د صليبي يرغلگرو او د دوئ دغلامانو په وړاندې لارتر اوسه په مقاومت بوخت او ددښمن دهر يرغل مقابلې ته چمتو دي ،چې د ژوند تر آخرې سلگی پورې به له خپل اسلام ، عقيدې او دگران افغانستان د مسلمان ولس څخه دفاع وکړي . والسلام

٢ - غازي آباد چې دکنړونواو نورستان تر منځ خورا حساسه ولسوالي ده ،داشغالگروپر خلاف پکې خپل جهادي تکتيکونه څنگه ارزوئ ؟

ځواب : دغازی آباد ولسوالی په مربوطاتو کې داشغالگرو صليبيانو(څلور بيزونه (مرکزونه) ) موجود وو، دوئ غوښتل چې د افغانستان مسلمان او مظلوم ولس تر خپل اثر لاندې راولې او خپل شوم اهداف وربانديې تحميل کړي، خو لله الحمد دکنړ او نورستان او بيا خاص د غازی آباد په دين مين ولس دمجاهدينو تر څنگ په يو غږ او قوي عزم په کلکه عقيده ودريد، د اشغالگرو پر خلاف يې مقدس جهاد ته دوام ورکړ، صليبي يرغلگر پدې ونه توانيدل ،چې دمجاهدينو مخه ونيسې او دوئ خپل د اسلام ضد اعمال په اسلام پاله ولس تر سره کړي، هماغه وو، چې دمجاهدينو کلک مقاومت او قوي مورال پر بنسټ د دوئ ټول تکتيکونه او دسايس د خاورو لاندې کړل، بالمقابل صليبيان د ځاني او مالي تلفاتو تر څنگ پدې پوه شول ،چې زمونږ اسلام دښمنه کړنې او شومې مفکورې په اسلام پاله ولس څه اثر نکوي . په نتيجه کې دسختو نه جوړيدونکو زخمونو، ځاني او مالي تاوانونو تر څنگ دغازي آباد دولسوالی څخه په تيښته بريالي شول .

٣-دولسي خلکومرسته باندې څومره باوري ياست؟

ځواب : لله الحمد دافغانستان مسلمان ملت او مخصوصا دغازي آباد مجاهد ولس دښکيلاکگروپه وړاندې دمجاهدينو تر څنگ په يوه عقيده او يوه اتفاق ولاړ، د تاريخ په اوږدو کې دهر طاغوتي دښمن په مقابل کې سرښندونکی مقاومت کړی او دخپلی عقيدې او ايمان په دفاع کې يې ځاني او مالي قربانيو ته لبيک ويلی، ددوئ مرستې هر وخت زمونږ لپاره وياړ اودفخر ځای وي ،په نتيجه کې الله رب العزت د مسلمان، افغان دښمن ته رسوايي او شرمندگي ور په برخه کړي او مسلمانو افغانانو ته يې د دښمن په مقابل کې سرلوړی او بريا په نصيب کړي ، زه اوس هم پدې عقيده يم . والسلام .

۴-دغازي آباد دخلکواحساساتو ته په کتو داشغالګروامریکایانوتلپاتي میشتیدنه اودغلامي اداري سره دامریکاییانودامنیتي سند په نوم دهیواددداشغال تړون ته له کومې ناحیي ګورئ؟

ځواب : دافغانستان د اسلام پاله ولس او دغازي آباد دولسوالۍ مربوطې پرګنۍ داشغالګرو سره دتلپاتي میشتندنې تړون لاسلیکول دغلامي اداري لخوایوه بزدلانه ګام بولي او داد مسلمان ملت پلورنې سره مرادف اودافغان قوم له نظره هیڅ ارزښت نلري ،ځکه چې دغه اشخاص دیو څو ډالرو په مقابل کې خرڅ شوي ،کله چې یو نفس خپل حریت نلري، هغه به د یو ملت واکداري څنګه وکړي، د افغانستان هیڅ یو مسلمان وګړی پدې قانع ندی ،چې خپل وطن د افغانستان په اسلام دښمنه اشغالګر و وپلوري دا عمل په کلکه ردوي او داشغالګر دښمن په وړاندې خپل اسلامي او افغاني غیرت ته له پیاوړې نکتې کوري ، او هغه عناصر چې وطن پلورني ته د آبادۍ په سترګه ګوري دا مفکورې او پلانونه به انشاء الله ګورته له ځان سره یوسي .

۵-پوښتنه :غازي آبادکې دکوم اشغالګرهیواد عسکرمیشت دي ؟

ځواب : دغازي آباد دولسوالۍ په مربوطاتو کې دکوم اشغال ګر هیواد عسکر فې الحال وجود نلري ،په تیرو کلونو کې پکښې امریکایي اشغالګر میشت وو، خو دمجاهدینو دکلک مقاومت او دمنظمو تکتیکونو په نتجیه کې دډیرو ځاني او مالي تلفاتو سره دغازي آباد ولسوالۍ په مربوطاتو کې خپل شتون ترک او دتیښتې لار یې غوره کړه او ټول شوم اهداف یې تر خاورو لاندې شول لله الحمد دغازي آباد دولسوالۍ امنیت دمجاهدینو په لاس کې دی او پرمخیون یې انشاء الله ګړندی روان دی

۶-پوښتنه :که احیاناً امریکایان نور لس کاله په افغانستان کې پاتې شي دخپلو مجاهدینوجهادي مورال څنګه ارزیابي کوئ آیادوئ به چمتو وي چې تر پایه ورسره وجنګیږي ؟

ځواب : هو ولي نه ! زموږ مجاهدین دیوه طولاني جهاد تابیا لري،خو چې ښکاري امریکایي اشغالګر او متحدین یې انشاء الله دخپلو نه جوړیدونکو زخمونو په حال کې دافغانستان څخه د تیښتې لارې لټوي ،دوئ ونه توانیدل ،چې دخپلو پرمخ تللو وسایلو سره دافغان مجاهد ولس تر خپل اثر لاندې راولي، دوئ په هر وخت او هر ځاي کې

دماتې او شرمندګۍ سره مخ شوي. بل خوا دافغانستان مسلمان ملت په الله ﷻ دکلکې عقیدې پر بنسټ ولاړ، او اشغالګر ښکیلاک دښمن ته یې کلک ځواب ویلی او دژوند تر آخري سلګۍ پورې به مقاومت ته دوام ورکړي، زه په دې عقیده لرم،چې انشاء الله بریا به د افغانستان د اسلامي امارت دمجاهد ینو په برخه وي، لکه چې الله تعالی په قرآنکریم کې داسې فرمایلي دي : ( الا ان حزب الله هم الغالبون ) ژباړه : خبر دار! یقینا چې دالله ﷻ ډله غالبه ده .

۷- پوښتنه :داسې راپورونه رسنیوکې خپرېږي چې غازي آبادکې هم دکونړونواو نورستان په څیردبې پیلوټه الوتکوبریدونه زیات شوي ،تر شا یې څه وجوهات ګورئ ؟

ځواب :صلیبي یرغلګر غواړي چې خپل شوم اهداف او پلانونه سرته ورسوي او دمجاهدینو مورال کمزوی کړي، خو الحمدالله دوئ به ونشي کولای چې دمجاهدینو سپیڅلي مقاومت ته زیان ورسوي ،بلکې دا د دوئ دناکامۍ ثبوت دی، د افغانستان مسلمان ولس د داسې بریدونو پرخلاف دښکیلاک دښمن په مقابل کې متحد او پیاوړی کیږي او دې ډول بریدونو ته د کرکې په سترګه ګوري او د دوئ په مقابل کې مقاومت او سرښندنه خپله اسلامي وجیبه بولي.

۸- پوښتنه :غازي آبادکې داسلامي امارت اداري تشکیلات په کومه کچه دي آیا ولسي خلک ددې ولسوالۍ دامارت اجرایوي یا قضایي قوې ته خپل مسایل دحل په بنسټ راوړي که یې دکابل غلامې ادارې ته ساتي ؟

ځواب : لله الحمد دافغانستان اسلامي امارت د ټول افغانستان غوندې په غازي آباد ولسوالۍ کې هم اداري تشکیلات لري لکه : دعوت ارشاد، تعلیم او تربیه، قضایي ارګان یعنې قاضیان او مفتیان او نور اړونده مختلف کمیسونونه لري، تاسو ته بهتر ه معلومه ده، چې دغازي آباد ولسوالۍ (۹۹ فیصده ) خاوره د غلامې ادارې څخه آزاده او تصفیه ده، صرف (۱ فیصد) خاوره د غلامې ادارې تر واک لاندې ده، چې یوه لویشت اختیارهم نلري او مسلمان ولس هم د دوئ دخودساخته او ظالمانه قوانینو پرځای په ټولو مشکلاتو او مسائلو کې دافغانستان د اسلامي امارت دغازي آباد

ولسوالۍ قضائي او اړونده ادارو ته مراجعه کوي . تر څو خپل مسایل او مشکلات د سپیڅلې غرا شریعت په رڼا کې چې تل یې پرې قرباني ورکړې حل او فصل کړي .

۹- پوښتنه :له ګاونډي ولایتونوڅخه کله نا کله دځنګلا تو سوځیدوخبرونه ورکول کیږي ،خلکو سره ددې اندیښنه وي ،چې داقصداً ځینې اشغالګر ددې لپاره کوي چې دمجاهدینو مورچلونه ترې ښکاره شي ،یا یې بل کوم شیطاني هدف وي چې ترسره کول یې غواړي ،آیا ستاسو اړونده سیمه کې همداسې کار کله شوی که شوی وي نو تاسو یې دملي ملکیت په عقیده دساتنې لپاره کوم ډول تدبیرونه په لاره اچولي دي ؟

ځواب : مننه ډیره ښه پوښتنه مو وکړه! مجاهدین دخپلو امکاناتو په تناظر دداسې ملي ملکیتونو ساتنه خپله اسلامي او ملي وجیبه بولې او تر ممکن حده یې دداسې پیښو ژوغوري ،خو اصلا امریکایي اشغالګرو په افغانستان کې هغه جنایتونه کړي او لا کوي یې ،چې د افغانستان مظلوم ملت یې هیڅ هیرولی نشي، لکه په ودونو بمبار، دښځو او ماشومانو په شهادت رسول ،دملي ملکیتونو چور اوغلا کول، د اسلام او مسلمان پر ضد عملیات او عامه وژنه او په اسلامي مقدساتو تیري پکې شامل دي، خو افغانستان مجاهد ملت دا کرغیړن پیژندلي، چې دوئ یې دافغانستان دخاورې او دهیواد والو دښمنان دي، او هغه څه کوي چې افغانانو ته د ګټې پر ځاي تاوان ور اړوي ،لکه عام المنفعه تاسیسات بمبارول او دځنګلاتو سوزول هم پکې شامل دي . دغازي آباد ولسوالۍ په مربوطاتو کې دارنګه پیښې رامینځ ته شوي ، خو لله الحمد مجاهدینو ته یې کوم نقصان نه دی رسولی، برعکس یې دملکي خلکو نفرت او غضب نور هم راپارولی .

۱۰- پوښتنه :غازي آبادکې نن سبا دمجاهدینو تر منځ ذات البیني محبت په کومه کچه ده ؟

ځواب : لله الحمد دغازي آباد ولسوالۍ مربوطه ولس او مجاهدین دقرآنکریم دفرمان په اساس سره ورونه دي، مینه اومحبت یې د اسلام دمبین دین په رڼا کې صورت نیسي ،ځکه چې مؤمنان په خپلو کې سره هر اړخیز تړاو لري، دالله ﷻ په یو والي ، د ټولو انبیاوو کرامو په حقانیت او دحضرت محمدصلی الله علیه وسلم په

آخري نبي كيدو او د قرآنكريم تر قيامته پوري دحق قانون پر منلو پوره اتفاق لري ،او خپل ټول مسايل او مشكلات دهمدغو اوصولو پر بنسټ مخ په وړاندې بيايي او ذات البيني محبت يې هم په همدې كنډه تلل كيږي .

۱۱- پوښتنه :داسې ښكاري چې دنورومطبوعاتو غوندې به دې دمطالعه ذوق له مورچل مجلې سره هم وي ،خو په باب يې څه مشورې لري؟ او راتلونكى يې څنګه ارزوئ ؟

ځواب : دمورچل مجلې دكاركونكيو څخه ډيره مننه كوم، چې مونږ ته يې سره د ډير مصروفياتو وخت او موقعه راكړه، له الله تعالى څخه ورته دلاښه پرمختګ دعا غواړم، بايد حقايق درک او مطبوعاتو ته يې وړاندې كړي او خپلې خپرونې لانورې هم ګړندۍ كړي ، مورچل مجله چې دسياسي ،علمي اوجهادي معلوماتو هينداره ده ،تر پخوا يې دعلمي او خبري دواړوبرخوكيفيت ډير ښه شوى او ښه راتلونكى ورته ګورو! اميد دى چې زمونږ دارمانونو انعكاس پكې وشي او چلونكي يې په ماهرانه توګه دامطبوعاتي جهاد پر مخ بوځي ، تر څوافغان مسلمان ملت ته دحقايقو غبرګون وښيي اوداسلام دښمنان او دسايس يې رسوا كړي !

۱۲- پوښتنه :دامارت ديوه مسؤل شخص په حيث خپلو خلكوته څه پيغام لري ؟

ځواب : دافغانستان مسلمان هيوادوالو ته او خاص كر دغازي آباد مؤمن او مجاهد ولس ته زما دا پيغام دى، چې دوحدت او يووالې لاسونه سره وركړي، دخپلې عقيدې او خپلواكۍ په دفاع كې د صليبي دښمن دسايسو ته متوجه او ويښ شي او دهيڅ قسم سرښندنې څخه ډډه ونكړي ،انشاءالله كاميابي زمونږ په برخه ده، صليبي دښمن او متحدين مغلوب دي ،لكه څرنګه چې الله تعالى په قرآن كريم كې مونږ ته پوره ډاډ راكوي : ( قُل للذين كفروا ستغلبون و تحشرون إلى جهنم و بئس المهاد ) كه صليبي يرغلګر څومره هم مغرور دي، خو انشاء الله چې مغلوب به شي او جهنم ته به يې راكاږي . والسلام .

له خدايه ﷻ درته اجر غواړوچې زمونږ پوښتنوته مو په ورين تندې ځواب ووايه !

اداره

# دسترګولیدلی حال :

## له فراه څخه ددښمن تیښته

ګزارش لیکونکی :میوندسادات

دافغانستان داسلامي امارت نظامي کمیسیون داسلامي امارت دمشرتابه په دستور په هیوادکي دمجاهدینودجهادي فعالیتونو دنظارت اوڅارنې او دمجاهدینو ترواک لاندې ساحوکې دهغوی داداري اوملکي چارو دانسجام اوتنظیم لپاره دهیواد ټولوولایتونوته باصلاحیته هیئتونه تعین او استخدام کړی .

اسلامي امارت غواړي چې دټول هیواد په کچه ددغو توظیف او استخدام شویوهیئتونودکاري رپوټونو او دهغوی دمشاهداتواوارزونوپه اساس دهیواد دپوځي او اداري چارو دلاسمون اوپرمختګ لپاره داسې تدابیر او تصمیمونه په کار واچوي چې دهغوی په وسیله جهادي صف لا پیاوړی اومنظم شي ترڅو وکولای شو دالله تعالی په نصرت او دهمدغه منظم او یوموټي جهادي ځواک په وسیله خپل هیواد داشغالګرو له واکمنۍ څخه داسلام دسپیڅلې نظام دحاکمیت لپاره آزاد او خپلواک کړو.

په نظرکې ده چې د دغو توظیف شویو پلاویو دکاري رپوټونو هغه برخې چې په هیواد کې دجهادي او اداري فعالیتونو موفقیت پکي منعکس اوکوم پوځي محرمیت ونه لري په مسلسله توګه دالاماره ویب پاڼې او داسلامي امارت د اړونده رسنیو له لارې له خپلو مجاهدو هیواد والوسره هم شریک شي.

په هیوادکې دمجاهدینو ترواک لاندې ساحو کې دپوځي او اداري فعالیتونو دڅارنې او ارزونې لپاره ددغو توظیف او استخدام شویو هیئتونو دراټول کړیو رپوټونو په سلسله کې مو داځل په لویدیځ زون

کې دفراه ولایت لپاره د ټاکل شوي هیئت د غړیو هریومحترم (مولوي عبدالسلام صاحب ،مولوي نصرالله صاحب اوقاري عبدالمالک صاحب )دیادښتونوپربنسټ همداراپورترتیب کړي.

دفراه ولایت دمساحت په لحاظ د افغانستان دلویوولایتونوڅخه ګڼل کیږي اودښه ستراتیژیک اهمیت څخه برخمن دی یرغلګروڅواکونوپه دغه ولایت کې هم دافغانستان دنوروسیموپه څیرډیري هڅې وکړي چې دافغان مجاهدولس دازادۍ اوخپلواکۍ غوښتني داعیه خاموشه کړي مګردمهربان څښتن جل جلاله په ځانګړي نصرت اوبرکت دلته هم دنوروولایتونوغوندي ددښمن ټولي حربې اودسیسې شنډي اورسواشوې ،یرغلګردښمن دافغان مظلوم ولس دایلولوپه موخه په پراخه پیمانه خپل زور،پیسې اووحشت وکاراوه، اماپه مقابل کې یې افغان باشهامته ولس نه یوازي داچې تابع نه شوبلکې ورځ تربلې یې داشغال پرضدجهادي صفونه لاپیاوړي اوپراخ شول.

موږچې دهلمند څخه فراه ولایت ته ولاړو،هلته مودخپل پلان له مخې دفراه ولایت بالابلوک ،بکوا،فراه رود،پرچمن ،کلستان او.....ولسوالیواوسیموته سفرونه وکړل اوپه ډیروپراخوسیموکې وګرځیدو،دعام ولس ،ولسي مخورو،علمایې کراماوومجاهدینوسره موددغه ولایت په پوځي ،اداري اواجتماعي چاروباندي پراخ اوازادبحثونه وکړل ،دوی ته موداسلامي امارت دمشرتابه پیرزوینې ،لارښوونې اوځانګړي هدایات وړاندي کړل.

موږدخپلې هیئتۍ پرمهال په مختلفوولسوالیواوسیموکي دولسي مخورواوعلماووڅخه عمومي وضعیت وپوښت دوی وویل چې :«موږدخدای جل جلاله ډیرشکرګوزاریوچې دامیرالمومنین ملامحمدعمرمجاهدحفظه الله په شان مخلص ،مدبراوشجاع امیرېې رابانددي لورولی دی ،داسې امیرچـــــې پــــه نـــــړۍ کــــې دنوروپاچاهـــانوپرخلاف دســـــرټیټۍ پرژونـــــدیې دمعاصرفرعون(امریکا)پرضدسپیڅلې مقاومت ته ترجیح ورکړه خپله برحاله واکمني تخت وتاج یې پرېښودخوداسلامي ارزښتونواوملي منافعودساتنې څخه تېرنه شو،نورخلګ دپاچاهۍ ترلاسه کولوپه خاطردښکېلاک طوقونه غاړي ته اچوي اودیوڅوورځوبلواکي واکمنۍ په هوس هررازغلامي اوسرټیټې مني ،خپل ولس قتلوي ،اسلامي ارزښتونه ترپښولاندي کوي ،خپل اقداراونوامیس سپکوي حتی تردې چې خپله مور(خاوره )پلوري نغدمثال یې دکابل اداري اوسنی چلونکی حامدکرزی او دده بانډ دی چې دلنډمهال عیش ونوش په خاطریې اسلامي اوملي منافع پرېښودل ،غربي لوچه ګان اوحرامزاده ګان یې افغانستان ته رادعوت کړل ښځې ،بوډاګان اوماشومان پرې شهیدانوي ،خپل ارزښتونه اوکلتورپه ښکنځې ،طبعي منابع په لوټې .موږدخپلومجاهدینوڅخه ډیرخوشحال یوچې دیرغلګرواوداخلي وحشي

صفته عسکروله سلطې څخه يې خلاصون راکړی اوپه ډيره دلاورۍ اواخلاص سر ه دخلګوخدمت کوي ،موږمجاهدينوته په واروارويلي اواوس بياستاسوپه مخ کي هم ورته وايوچي موږهررنګه همکارۍ تـه تياريوکه زموږپه سراومال دمجاهدينوښه کيږي وبه يې نـه سپمو و ،دوی چي خپـل سرونه قربانوي ،موږډوډۍ اودشپې تېرلوځای نه شوورکولای ؟!

دازموږدپـاره افتخـاردی چـي مجاهــدين راســره پاتــه شــي ،خـدمت يــې وکړواوهوســايې کړو ،موږدهغوکسانو پرحال تعجب اوافسوس کووچي پـه مجاهدينوپسې بدي اوله واقعيته ليري خبري کوي اودکفارودراډيوګانوپـه خوله خپـل مجاهـدين پـردي بـولي جهاديې ترهګري اودپاکستان اوايران جنګ ګڼي ،خوامريکايان اوملګري يې بياسوله ساتي اودبيارغوني پوځيان بولي ،داداسي خبري دي چي واقعيت ددې پرعکس دی ،مجاهـدين زموږورونـه دی ،يومـودين ،يوموهيواد ،يوموکلتورګته اوتاوان مو سره شريک دي ،خوامريکايـان زمـوږددين اووطـن دښمنان دي ، نـه مـودين سره ګډدی نـه کلتور ،نه هيواداونه هم نورمنافع نودابه څومره احمقانه قضاوت نه وي چي خپل مجاهدين ورونه پردي اوښکاره دښمن دوست وګڼو؟!.»

دمجاهــدينوځايي مشــرانواوورغلي پــلاوي دمجاهــدولس دسرښــندونواوهمکاريوډيره ســتاينه اوقــدرداني وکــړه ،ټولوپــه يوخولــه دافغانســتان څخــه ديرغلګروعســکرواودهغوی دداخلــي مزدورانودنابودۍ اوديواسلامي اوملي نظام داستحکام دعاوکړه .

پــه فــراه ولايــت کــي مجاهــدين ډيرفعــال او پــه خــورا حيرانــونکي کثــرت کــيووددښــمن پرپوستواوقرارګاووېې پرله پسې حملې کولې ،له ډيروسيمودښمن پښې سپکي کړې وې ،پوستې اولوی لوی مرکزونه يې تخليه کړي وو ،دښمن يوازي په ځينوخاصوسيموکي چي ډيري پخې قرارګاوي يې جوړي کړي وې شتون درلود ،هغه هم په داسي شکل چي پرمجاهدينويې بريدنـه شوای کـولای يـوازي يـې ځـان سـاتني تـه پـام کـاوه .اتلومجاهـدينوزبون دښـمن پرهمـدې حـال هـم ارام تـه نـه پرېښـوده توغنديزبريدونه يې پرکول ، کمينونه يې ورته نيول ،په فراه کي چي دکندهار– هرات لويـه اومهمـه لارهم تېره شوې ،همدغه لارچي په لويديځ اوجنوب لويديځ کي ددښمن دقواووترټوله مهمه اکمالاتي لارده هميشـه دمعرکې يـوګرم ډګرپاتـه شـوی دی ،پرهمدغـه لارلـه شـمال اوجنـوب څخـه مجاهـدين ددښـمن پـوځي اولوژيسـتيکي کتارونـه تراورلانـدي نيسـي ،دښـمن تـه دسـراومال ډيرزيـان اړوي اوغنيمتونه ترلاسه کوي .

دفراه ولایت په بیلابیلوسیموکي مجاهدینو پردښمن کړی خوراډیره ورتنګه کړې ده لنډه داچي دجګړې ابتکارپه تمامه معنی داسلامي امارت دقهرمانومجاهدینوپه لاس کي دی ،نامراده غلیم په انتهایي ذلت اوشرمندګی کي شپې تیروي، وحشي یرغلګرچي له سیمي څخه تیښتي ته اړیستل کیږي داخلي اجیران یې دفوق العاده مایوسی سره مخ کیږي .

ښه ډیرهغه کسان چي ددښمن دتبلیغاتوښکارشوي اودکابل داجیررژیم سره یې کارکاوه پرخپل دغه عمل پښېمانه شوي دي دوی اوس دفراه ولایت په څېرپه نورولایتونوکي هم داسلامي امارت ددعوت اوارشادکمیسیون اوځایي مجاهدینوسره تماسونه نیسي په ډلو- ډلومجاهدینوته تسلیمیږي ډیری کسان له ځان سره سلاوي اوډیرمهمات هم اسلامي امارت ته سپاري .دوی ته داسلامي امارت له لوري دحفاظت تضمین اوپه تېره هغوکسانوته چي پردښمن یې حملې کړي وي لویې جایزې ورکول کیږي .

دفــــراه ولایــــت غښــــتلومجاهدینوموږددغه ولایــــت پرډیروسیمواوولســـوالیو وګرځولولـــه خپلوموفقیتونواوستونزویې خبرکړو ،دمشرتابه څخه ډیرخوشحال وو،چي دوضعیت دمعلوموله په موخه پلاوي ورته لیږي اووخت پروخت لازمي سپارښتني اوهدایات ورته کوي .

په فراه ولایت کي داسلامي امارت مجاهدین زموږتراټکل ډیرزیات فعال وو، موږچي دهیتی پرمهال ددوی سره ملګري وو،چي له یوې سیمي به موبلې ته سفرکاوه پرپېکپ موټربه موداسلامي امارت دامن اوشریعت سپین بیرغ رپاندو،اوله هرډول خوف پرته مودمقصودمنزل پرلورګامونه اوچتول، د فراه ولایت په مختلفوولسوالیوکي چي مودمجاهدینولاسته راوړني اولوړمورال ولیدداسي زیری یې راکاوه چي که خدای جل جلاله ته منظوروه په لنډراتلونکي کي به له ټول افغانستان څخه داشغال لمن ټوله شي .

خلاصه داچي موږچي دفراه ولایت عمومي جهادي وضعیت له نژدې ولید،واقعیت دهغه څه چي یرغلګراودکابل اداره یې دعوه کوي اویاپه اصطلاح ازادورسینوکي وړاندي کیږي برعکس ؤ، دفراه ولایت له ډیرو پراخو سیمو اوساحو څخه مجاهدینویرغلګراوداخلي اجیران یې شړلي وو،مفتوحه سیمي دومره پراخي وې چي موږبه ورځوورځوپه موټرکي مزلونه پکي وکړل په داسي حال کي چي ددښمن څرک موهم پکي ونه لیده ،خلګ داسلامي امارت دمجاهدینوڅخه خوشحال ووخپلي ستونزي اومشکلات یې دامارت نظامي اوملکي اداروته راجع کول ،په ټوله کي دخلګودعدلي ،تعلیمي اقتصادي اواجتماعي ستونزودحل یوازینی مرجع اسلامي امارت وه .

# صلوة الاوآبين

## معنى اوتعريف يې :




اوابين : دلغوي معنى په لحاظ داواب جمع ده اوهغه چاته ويل کيږي چې يوه ګناه ځيني صادره شي اوسمدستي توبه وباسي . اودشريعت په اصطلاح کي صلوة الاوابين هغه شپږو،څلورو ياشلور کعتونو ته ويل کيږي چې دماښام دلمانځه وروسته اداکيږي .

دأوآبينو دلمانځه فضيلتونه :

دأوآبينو لمونځ په حديثو کې په درو طريقو ذکرشوي : يعني څلور رکعته ، شپږ رکعته ، اوشل رکعته اوپه حديثو کې له وړاندينيو دروقسمونو څخه دهرقسم ځانګړي اجرونه اوثوابونه ذکرشوي دي :

مثلا :

دأوآبين دڅلورو رکعتونو فضيلت

في الطحطاوي على مراقي الفلاح ٣٩٠\١ : وعن ابن عباس رضي الله عنهما أنه عليه السلام قال: "من صلى أربع ركعات بعد المغرب قبل أن يكلم أحدا رفعت له في عليين وكان كمن أدرك ليلة القدر في المسجد الأقصى وهو خير له من قيام نصف ليلة".

ژباړه : دابن عباس رضی الله تعالی عنه څخه روایت دی : چې رسول الله [ صلی الله علیه وسلم ] وفرمایل : چاچې څلور رکعته دماښام دلمانځه وروسته وکړو، مخکې تردې چې له یوچاسره خبري وکړي ،نولوی خدای [ج ]به یې دغه لمونځ علیین ته پورته کړي ، اوداسې به وي لکه دقدرشپه چې یې داقصی په مسجد کې موندلي وي ،اودغه لمونځ دده لپاره دنیمایې شپې ترلمانځه غوره ده .

تشریح : یعني څوک چې دماښام دفرضو اوسنتو څخه وروسته سمدستي څلور رکعته نور دأوابینو دلمانځه په نیت په صحیح طریقه سره اداء کړي اوداعمل جاري وساتې ،نودا لاندي دري اجره به ترلاسه کړي :

١= لوی خدای به یې دغه لمونځ قبول کړي اوعلیین ته به یې پورته کړي . علیین ته هغه اعمال ځي چې الله تعالی قبول کړي اوخوښ کړي وي .

٢= په أوابینوبه دومره ثواب ترلاسه کړي لکه یوتن چې دقدرپه شپه ؛ داقصی په مسجد[یعني بیت المقدس ] کې موندلي وي .

٣= اودأوابینو لمونځ دنیمایې شپې ترقیامه غوره ده .

عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: مَنْ أَدْمَنَ عَلَى أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ بَعْدَ الْمَغْرِبِ، كَانَ كَالْمُعَقِّبِ غَزْوَةً بَعْدَ غَزْوَةٍ .الزهدوالرقاق لابن المبارک ١\٤٤٥

ژباړه : ابن عمر رضی الله تعالی عنه وایې :څوک چې تل دماښام دلمانځه وروسته څلور رکعته لمونځ کوي نودومره ثواب به یې وي لکه له یوي غزا وروسته چې سړی بله غزا کوي .

دشپږو رکعتونوفضیلت :

په حدیثو کې دماښام دلمانځه څخه وروسته دشپږو رکعتونو دثواب تذکره داسې شوې ده :

في المبسوط للسرخسي رح ١\١٥٧(وإن تطوع بعد المغرب بست ركعات فهو أفضل) لحديث ابن عمر – رضي الله تعالى عنه – قال قال النبي – صلى الله عليه وسلم – «من صلى بعد المغرب ست ركعات كتب من الأوابين وتلا قوله تعالى {فإنه كان للأوابين غفورا} [الإسراء: ٢٥]

ژباړه : ابن عمر رضی الله تعالی عنه وایې : چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل :څوک چې دماښام دلمانځه وروسته شپږ رکعتونه وکړي نو داوابینو څخه به وګڼل شي . اوبیایې دآیة تلاوت کړ : فانه کان للاوابین ........ یعني بې شکه چې الله تعالی اوابینو ته دهغوئ دګناهونو بخشونکی دی .

تشريح : يعني لوی خدای جل جلاله به دأوابينو دلمانځه په بركت دغه تن دأوابينو له ډلي څخه كړي ، أوابين هغه خلگ دي چې په دنياكې يې له گناهونو څخه ځان ساتلى وې ،او كه كله كومه گناه ځيني صادره شوي وې نوسمدستې يې توبه ايستلې وي ،اوالله تعالى يې توبه هم قبوله كړي وي .

ومثله في البدائع ٢٨٥\١

ومثله في البحر ٥٤\٢

ومثله في الطحطاوي على مراقي الفلاح ٣٩٠\١

وفي الاختيار ٦٦\١ (وبعد المغرب ستا) عن أبي هريرة قال: قال رسول الله – صلى الله عليه وسلم – : «من صلى بعد المغرب ست ركعات لم يتكلم فيما بينهن بشيء عدلن له عبادة ثنتي عشرة سنة» رواه ابن ماجه برقم ١١٦٧والترمذي برقم ٤٣٥

ژباړه : دابوهريرة رضى الله تعالى عنه څخه روايت دی : چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : چاچې دماښام دلمانځه وروسته شپږ ركعته لمونځ وكړ اوددې لمانځه په مينځ كې يې خبري ونه كړي نو دومره ثواب به ور كړل شي چې د١٢ كلونو دعبادت سره برابر وي .

وفي مراقي الفلاح والطحطاوي ٣٩١\١ وعن ابن عمر قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "من صلى ست ركعات بعد المغرب قبل أن يتكلم غفر له ذنوب خمسين سنة".

ژباړه :دابن عمر رضى الله تعالى عنهما څخه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل :څوک چې دماښام دلمانځه وروسته شپږ ركعته اداء كړي ؛ وړاندې له دې چې خبري وكړي ،نودده دپنځوسو كلونو گناهونه به ورباندې معاف شي .

وعن عمار بن ياسر رضي الله عنه قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "من صلى بعد المغرب ست ركعات غفرت ذنوبه وإن كانت مثل زبد البحر "

ژباړه : دعماربن ياسر رضى الله تعالى عنهماڅخه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : څوک چې دماښآم دلمانځه وروسته شپږ ركعته أدآء كړي دده گناهونه به وبخشل شي كه څه هم ددرياب دزگونو په څير زيات وي .

دشلور كعاتو أوآبينو فضائل

في الطحطاوي على مراقي الفلاح ١\٣٩٠ وعن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه أنه عليه السلام قال: "من صلى بعد المغرب عشرين ركعة بنى له بيتا في الجنة".

ژباړه : له ابوهريرة رضى الله تعالى عنه څخه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : چاچې دماښام دلمانځه څخه وروسته شل ركعته لمونځ وكړ نولوى خداى إجل جلاله إبه په جنت كې كور ورته جوړ كړي .

دأوابينو دلمانځه احكام

١= دأوآبينو لمونځ سنت دى او كه نفل ؟

دغه شپږ ركعته داوابينو لمونځ ؛ چې دماښام ترلمانځه وروسته اداكيږي ، زموږ فقهاؤ سنت ،مستحب اومندوب ګڼلي دي ، علامه شامي اوعلامه طحطاوي اونورو علماؤ سنت ،مستحب ،اومندوب دري واړه دسنتو بيلابيل نومونه بنودلي ،

الحاصل :داچې دأوآبينو لمونځ سنت دى .

وفي البحر ٢\٥٤ وذكر في التجنيس أنه يستحب أن يصلي الست بثلاث تسليمات

وفي مراقي الفلاح "و"ندب "ست" ركعات "بعد المغرب" لقوله صلى الله عليه وسلم: "من صلى بعد المغرب ست ركعات كتب من الأوابين".

وفي الطحطاوي ١\٣٩٠ "المستحب من السنن" المستحب والمندوب والمرغب فيه والحسن ألفاظ مترادفة معناها واحد وهو ما رجح الشرع فعله على تركه .

وفي الموسوعة الفقهية ٢٧\١٣٣ فقالوايستحب اداء سة ركعات بعدالمغرب ليكتب من الاوابين .

٢= داوابينو لمونځ څور كعته دي ؟

داچې داوابينو لمونځ څور كعتونه دي ؟نوپه دي هكله وړاندي دري ډوله روايتونه ذكرشوو ، چې په يوه كې شپږ ،په بل كې څلور ، اوپه بل كې دشل ركعتونو تذكره شوي ده ،البته داحنافو فقهاؤ دشپږو ركعتونوروايت مختاره كړى دى . خودعامو فقهاؤ ،محديثينو اومحقيقينو له عباراتو داسې معلوميږي چې په دغه دروطريقو كې چې هره طريقه اداء كړي نوهغه ګڼې دأوآبينو لمونځ أدآء كړ او مذكوره ثواب يې په برخه كيږي ان شاء الله تعالى .

كمافي الطحطاوي ١\٣٩٠ والبحر ٢\٥٤

في الطحطاوي على مراقي الفلاح ١\٣٩٠ : وعن ابن عباس رضي الله عنهما أنه عليه السلام قال: "من صلى أربع ركعات بعد المغرب قبل أن يكلم أحدا رفعت له في عليين وكان كمن أدرك ليلة القدر في المسجد الأقصى وهو خير له من قيام نصف ليلة".

و فيه ايضا ١\٣٩٠ : وعن ابن عمر قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "من صلى ست ركعات بعد المغرب قبل أن يتكلم غفر له ذنوب خمسين سنة". وعن عمار بن ياسر رضي الله عنه قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "من صلى بعد المغرب ست ركعات غفرت ذنوبه وإن كانت مثل زبد البحر "وفيه ايضا ١\٣٩٠ وعن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه أنه عليه السلام قال: "من صلى بعد المغرب عشرين ركعة بنى له بيتا في الجنة".

٣= دماښام سنت په أوآبينو کې حساب دي او کنه ؟

علامه ابن نجيم رح په بحر کې ليکې : چې دماښام دوه رکعته سنت په شپږو اوابينو کې شمار دي . لکن په طحطاوي على مراقى الفلاح اومنحة الخالق کې علامه شامي رح ليکلي دي چې شپږ رکعته اوابين دماښام ددور کعتونو څخه علاوه دي ..

في البحر ٢\٥٤ الصلوة المسنونة كل يوم : وحكى في فتح القدير اختلافا بين أهل عصره في مسألتين الأولى هل السنة المؤكدة محسوبة من المستحب .... وفي الست بعد المغرب أو لا ؟ الثانية : على تقدير الأول هل يؤدي الكل بتسليمة واحدة أو بتسليمتين واختار الأول فيهما .

وتحته في المنحة قال الشيخ إسماعيل وفي المفتاح

وندب ست ركعات بعد المغرب يعني غير سنة المغرب لقوله – عليه الصلاة والسلام – «من صلى بعد المغرب ست

ركعات لم يتكلم فيما بينهن بسوء عدلن عبادة ثنتي عشرة سنة» كذا في الإيضاح اه.

وفي الطحطاوي ١\٣٩١ على مراقي الفلاح وقد عطفنا المندوبات على المؤكدات كما في الكنز وغيره من المعتبرات وظاهره المغايرة فتكون الست في المغرب غير الركعتين المؤكدتين.

٤= أوآبين په يوه سلام دې او..... ؟

داچې دأوآبينو لمونځ څلور يا شپږ ياشل ركعته دي ، علامه شامي رح دغزنويه اونورو په حواله نقل کړي بلکه أثر هم په کې موجود دی : چې شپږ رکعتونه به په دري سلامه باندي أدآء کوي . نوله دې عباراتو

معلومېږي چې که څوک څلور ياشل رکعته کوي نو هم دغه دشپږو رکعتونو په طريقه دي أدآء کوي ،يعني په هردوه رکعته دي سلام ګرزوي ، اودتر اويحو په شکل دي کوي .

في المنحة الخالق على البحر ٢\٥٤ وفي الغزنوية وصلاة الأوابين وهي ما بين العشاءين ست ركعات بثلاث تسليمات .... وكذلك صرح في التجنيس وغرر الأذكار بأنها بثلاث تسليمات ثم قال في الغرر الأذكارية وفسره يعني أنسا راوي الحديث بثلاث تسليمات اهـ.

كلام الشيخ إسماعيل ثم قال مع أن الحديث يشير إلى ذلك حيث قال لم يتكلم فيما بينهن بسوء إذ مفهومه أنه لو تكلم بخير استحق الموعود اهـ فظهر أنها ست مستقلة كما هو صريح المفتاح وظاهر شرح الغزنوية وأنها بثلاث تسليمات وإن قال في الدرر والتنوير أنها بتسليمة واحدة قال الرملي والذي يظهر لي في وجه الفرق بين هذه الست وبين الأربع في الظهر والعشاء أنها لما زادت عن الأربع وكان جمعها بتسليمة واحدة خلاف الأفضل لما تقرر أن الأفضل فيهما رباع عند أبي حنيفة – رحمه الله – ولو سلم على رأس الأربع لزم أن يسلم في الشفع الثالث على رأس الركعتين فيكون فيه مخالفة من هذه الحيثية فكان المستحب فيه ثلاث تسليمات ليكون على نسق واحد هذا ما ظهر لي من الوجه ولم أره لغيري فليتأمل اهـ وهو حسن

٥= أوآبين دصلوة الاوابينو په نيت أدآء کېږي .

علامه شامي رح په منحة کې ليکلي :چې دأوآبينو لمونځ به دأوآينو په نيت أدآء کوي .

وفي المنحة على البحر ٢\٥٤:قال أبو البقاء القرشي في شرحها يصلي ست ركعات بنية صلاة الأوابين .

٦= کوم سورتونه په أوابينو کې ويل کېږي ؟

همداراز علامه شامي رح ليکلي : چې دأوآبينو دلمانځه په هرلمړي رکعت کې دفاتحي وروسته به قل ياأيها الكافرون ، اوپه دوهم رکعت کې دري ځله قل هوالله احد يعني سورة الاخلاص وايي :

في المنحة :على البحر ٢\٥٤:قال أبو البقاء القرشي في شرحها يصلي ست ركعات ... يقرأ في كل ركعة بعد الفاتحة {قل يا أيها الكافرون} [الكافرون: ١] مرة {قل هو الله أحد} [الإخلاص: ١] ثلاث مرات قاله الشيخ عبد الله البسطامي اهـ.

# پيدايښت او دژوند لمړنی مراحل

ترتيب کونکی ح (ظريف)

شهيد ملا محمد نسيم (قاصد )چي په کاکو سره يې شهرت درلود دحاجي(شاه محمد ) اکازوی دکندهار ښار په (محل نجات دا څکزو کلاچې)په کلي کي تقريبا **۴۵** کاله وړاندي په يوه ديندا ره کورنۍ کي ودنياته راغلی نوموړی ابتدايي زدکړې دخپل والد صاب پر اکا مرحوم ملا **لعل محمد آخند** چي دزيات شمير شاګردانو استاذ او همدايې دنده وه تر سره کړې او دخورا ښه قرأت او ښکلي اواز درلو دنکي په توګه يی په سيمه کي شهرت درلود نوموړی شهيد دهم هغه پيله ډيرصالح امين او له خدايه په واقعي ډول ويريدونکی څوک وو او ژوند يې له غدر خيانت او نفاق څخه ډير پاک وو له کوچني توب نه دښو اخلاقو مينې اوغيرت يوه نمونه وه

### دشوروي يرغل په وړاندي دنومړي جهادي بهير

کوم وخت چي سرو لښکرو پر افغانستان تيری وکړنو ښاغلی قهرمان په ډيره کم عمري کي دمجاهدينو سره يو ځای وسنګر ته ودانګل او دجهاد دشروع لمړی مرکز يې دکندهار ار غنداب وو اوتر هغه ورسته يې په بيلابيلو جبهاتو کي جهادي خدمات تر سره کړه او تر هغه وخته يې چي روسانو او ددوی ګوډاګيانو ماته خوړله خپل جهادي سنګر تود ساتلی وو نوموړي په چريکي بريدونو جهادي تاکتيکونو او له دښمن سره په مخامخ جګړو کي له هم هغه پيله خورا مهارت درلود دده دجهاد او چريکي عملياتو کيسې خو ډيري دي خو دبيلګې په توګه يې دکوچني والي ددورې دجهادي خدمت دا يوه قصه را اخلم چي يو مجاهد راته قصه کوله چي موږ دکندهار په محله جات کي په څو ورځني جنګ اخته وو خلقيانو شاوخوا لارې

بندی کړې او دجګړې سیمي ته یې څه نه را پرینښودل چي بالآخره دډوډۍ له سخت کمبود سره مخ شوو نو محمد نسیم وویل چي دا کار زه کوم موږ چي دده وکشر توب ته وکتل نو مو باور نه راته چي دا کار دي وکړي خو دادی دی ولاړ یو وخت که ګورو ډیره ډوډۍ یې را رسولې ده چي کله مو ورڅخه وپوښتل چي دخلقیانو تر ځنځیرانو دي څرنګه را تیره کړله ده په خنداکي راته وویل چي کله به خلقیانو ددومره ډیرې ډوډۍ دوړلو پوښتنه را څخه وکړه نو مابه په زړغوني آواز ورته وویل چي نیکه مې مړ شو اوس ختم ورپسې کوو بس دوی به هم اجازه راکړله چي څه

## په خپل منځي جګړوکي دده کردار

کله چي روسان او ددوی ګوډاکی کمونیستي او خونخوارحکومت له منځه ولاړی اوپه ټول هیواد خصوصا کندهار کي دمجاهدینو دځینو جبهو تر مینځ دردونکي او بدنام جنګونه پیل شول نوموړی پر کور کښیناستی او دکور په کار بوخت شو په همدغه وخت کي یې دتصوف سره خاصه مینه پیدا سوه چي بیا په همدې سلسله کي دهغه وخت دیو ماذون خلیفه مرید سو په همدغه اړخ کي ډیر مخته ولاړی ډیر عبادت او ذکر بې کاوو او خپلو ملګرو ته به یې هم ددې توصیه کوله چي ځانونه له خپل منځي جګړو او نورو مفاسدو وژغوري او دځانونو اصلاح ته متوجه شي.

## دطالبانو په اسلامي تحریک کي دنوموړي فدا کاری او خدمتونه

کله چي دامیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد حفظه الله تر قیادت او مشری لاندي دطالبانو اسلامي تحریک دفساد ، ټوپکسالارۍ ، ځنځیرونو دلیرې کولو او دجهاد داصلي اهدافو دتر لاسه کولو لپاره حرکت پیل کړ نو یو په لومړیو کسانو کي ملا محمد نسیم وو چي داسلامي تحریک په چوکاټ کي یې دفساد پر ضد دشهید قهرمان حاجي ملا محمد اخوند تر مشری لاندي خپل جهاد ته ادامه ورکړه او دده مرحوم سره یې وړه پر وړه دجهاد سنګر ګرم ساتلی وو کله چي هغه دسماعیل خان دقواو سره دحق او باطل په جګړه کي شهید شو نو یې له ښاغلي محترم ملا برادر اخند سره خپلې ملګرتیا او جهادي خدمت ته ادامه ورکړه دغرب په طرف کي داسماعیل خان دقواو سره دمجاهدینو په څنګ کي په ډیره میړانه وجنګیدی کله چي دسماعیل خان قوا وې دهلمند ګرشک ته را ورسیدل په دغه وخت کي نوموړی په میدان ښار کي وو دمرحوم الحاج ملا محمد رباني ، شهید ملا مشر آخند او نورو مشرانو سره یو ځای دمیدان ور دګو دجهادي لیکو څخه دسماعیل خان دقواو دنور پیشرفت دمخنیوي په مو خه

کندهار او بیا دهلمند کرشک ولسوالۍ ته بیله دي چي په کور کي ارام وکړي وخوځید او هلته ترهغو پاته سو تر څو چي هرات او شاوخوا ولایتونه او سیمي دمجاهدینو لخوا فتحه سوي

نو موړي دمسؤلیت او مشر توب سره هیڅ مینه نه درلوده یو ځلي ملا برادر آخند ورته د ډیرو ملګرو مشر توب وسپاری خو ده هغه قبول نه کړ ده دا خوښه بلله چي دفرد په حیث خدمت وکړي دهرات په فتحه کي یې ډیره موثره ونډه درلوده دملا برادر آخند سره په ملګر تیا کي یې دهرات په فتحه کي برخه درلوده کله چي دا سما عیل خان قوا وي ګرش ته را نزدې سوي او مجاهدین ګرش ته را پر شا سول په دغه وخت کي دی په میدان ښار کي و کله چي الحاج ملا محمد ربا ني او شهید ملا مشر اخند د اسلامي امارت دمشر امیر المو منین په غو ښتنه دنورو مشرانو په ګډون دمیدان ښار دجهادي خطونو څخه دغرب وطرف ته را وغوښتل سوه څو ددښمن دپر مختګ مخه ونیسي شهید ملا محمد نسیم هم په هم هغه طیاره کي دمشرانو سره را غلی اوبیله دې چي په کور کي ایسار سي سمد ستي دګرش په خوا دمجاهدینو سره روان سو تر څو چي هرات فتحه کیدی دی هم هلته په جبهاتو کي حاضر و ،دکابل او شرقي ولایتونو دفتحي په وخت شهید مر حوم دکندهار څخه داداري پلاوي سره دلوګر او ازري ولسوالۍ پر لار دننګر هار مر کز جلال آباد ته ولاړی دهم هغي لاري څخه دکابل دفحي په وخت له مجاهدینو سره یو ځای کابل ته ستون سو

کله چي په شما لي کي ددښمن سره سخته جګړه روا نه وه په دغه وخت کي دمجاهدینو داکما لاتو مشري چي خورا سخته دنده وه دده په غاړه وه ، چي په ډیره میړانه یې خپله وظیفه تر سره کړه ، ورسته ددفاع وزارت دامنیت او حفاظت دنده ورته وسپارل سوه او د اسلامي امارت د دفاع دوزیر الحاج ملا عبیدا لله آخند په خاصو ملګرو کي دا خل سو چي ددې په څنګ کي یې کله کله په لومړیو خطونو کي دجنګي محاذ موقتي مشري هم پر غاړه اخستله چي دنوموړي د زړورتیا او ښه جنګي تاکتیک ستاینه د اسلامي امارت وتلی او قهرمان شهید ملا دادالله اخند په وار وار کوله او نوموړی یې دجنګ دمیدان یو وتلی او ښه ملګری بالو ورسته ددفاع دمحترم وزیر لخوا ددفاع وزارت دستري منتظره قطعې دمر ستیال په حیث وټاکل سو چي په ډیر جنګونو کي یې دیو وتلي ،غیرت مند او با تد بیره قو مندان په حیث بر خه اخستله یو ځل دبا میانو ولا یت دجنګ په مهال په هغه ولایت کي دټولو مجاهدینو مشري هم ور دغاړي وه چي په ډیر ښه ډول یې هغه خدمت تر سره کړ او ډیر تکالیف یې وګا لل یو ځل دشمالي جنګ کي مجاهدینو ستره بر یا تر لاسه کړه چي نوموړی هم په همدې جهادي

کاروان کي موجود و خو دښمن دفریب او چل څخه کار وا خیست مجاهدین بیر ته را شاته سول چي په دې شا ته تګ کي ډیر مجاهدین په شهادت ورسیدل یا اسیر سول دده موټر او ډیری ملګري هم د دښمن لخوا ووشتل سوه خو شهید مرحوم په ډیر مهارت خپل ډیری ملګري وژغورل دغور بند درې ته یې دډیرو تکالیفو په ګاللو سره ورسول او بیا کابل ته را غله

## دامریکایي صلیبي یرغل په وړاندي

اوکله چي چي دغربي ښکیلاک لښکرو په ډیره بې رحمۍ سره پر افغانستان یرغل وکړ او دامریکا په مشرۍ تر ۴۰ زیاتو هیوادونو یې ننګه وکړه نوموړی په همدغه وخت کي ددفاع وزارت دمنتظره قطعې دمر ستیالۍ پر دنده وو  په همدغه مهال یې هم خپله ور سپارل سوي دنده په ډیر شهامت او غیرت تر سره کول او خپل مجاهدین به یې دیر غلګرو دوحشي بمبار څخه په ډیر مهارت ژغورل او دشمالي اتحاد دټو پکیانو پر ضد به جنګیدل لنډه دا چي تر هغه وخته پوري یې نه ماتیدنکي مبارزه وکړه او په هغه ورستیو کسانو کي و چي دمجاهدینو لخوا دکابل دپریښولو په وخت دلوګر او پکتیا دلاري را ووتل او بیا په هغه لوی کاروان کي چي دکندهار ته راغلی نوموړی همدلته کندهار ته را ورسیدی

ښاغلی ملا محمد نسیم هم دنورو جهادي مشرانو په څیر دا ځل بیا ښه په کلکه او ایمانداری له دې کفري حشرباټو سره وجنګید چي څوځو ځله وریاندي امریکایي الوتکو بمبار هم وکړ او دنوموړي دسپرلۍ موټر یې په کندهار کي دګزمې په وخت هم وویشت اودی پکي زخمي هم شو  داسلامي امارت تر ورستي مرکز کندهار تر سقوطه هم هلته وو کله چي دهیواد ټولو بر خو سقوط وکړ او داسلامي امارت مشر تابه نوره مخا مخ جګړه داشغال ګرو سره لازم ونه بلل کله چي دویم ځل داسلامي امارت قهر مانو مجاهدینو داشغال ګرو په ضد چرکي عملیات پیل کړه نوموړی په هم هغه لمړیو کسانو کي وو چي دجهاد میدان ته یې په ډیر پیاوړي عزم ور ودانګل ، ملګري یې دغربي اشغال او تاړاک په وړاندي په نوې بڼه منسجم کړل چي ډیر لږ وخت لا نه وو تیر شوی چي دکندهار ولایت مقام اودلوی ملاصاحب کور چي خارجي اشغال ګر پکي میشت وه او داحمدولي کرزي کور یې تر تو غندویې برید ونو لاندي چي ټول ښار یې ولړزاوو را وستل او یو ځل یې بیا جهادي ولولې دملګرو په زړونو کي را وپارولې او ددې تر څنګ یې دکندهار ښار په مختلفو پرخو کي پر دښمن چریکي بریدونه هم پیل کړل چي په دې سره یې دښمن  ډیر وار خطا کړ

## دنوموړي اسارت

خو څه وخت بعد په داسي حال کي چي دعملياتو په لور ديو بل ملګري سره روان و او تو غندۍ هم ور سره وي دوطن او اسلام ددښمنانو لخوا ونيول سو جنايت کار ګلا آغا چي دا وخت دکندهار والي وو په نيولو يې ډيره خوښي وښودله او هغه چاته چي دنوموړي په نيولو کي يې مرسته کړې وه انعام ورکړ او ملامحمد نسيم ته يې دښکنځلو بد رد ويلو تر څنګ دا هم وويل چي مړ به دي کړم خو ده وهغه ته بالمثل جوابونه ورکړل او دا يې هم ورته وويل چي موږ له مرګه نه ډاريږو نرپسه پيدا دچړې دپاره ده

خو ګل اغاچي امريکايانو ته ډير نيژدې کس او بې رحمه واکدار وو دملا محمد نسيم په شکنجو او ربړولو کي هيڅ سرپه هم نه وکړه او امر يې وکړ چي درې شوا روزه يې مسلسل را وځړوۍ چي بيا يې ديوه شوا روزدپاره په ستنه پوري تړل او بيا راځړول حتمي شول ددې شهيد پلار چي هغه يې هم دده سره نظر بنده کړی وو وايي چي کله يې نوموړی غازي له مانه جلا کړ نو سمد ستي يې دبانس اره شوي لر ګي چي دده دوهلو لپاره يې را وړل په ما وليدل چي له ۱۵ دقيقو وروسته يې نوموړی پر کټ باندي دبې سدۍ په حالت کي را ويوست او ماته يې ويل چي راته ووايه دغه څه کار کاوو

ماورته وويل چي تاسو داسي ټوکرټوکر کړ څه يې نه درته وويل نو وماته به يې څه ويلي وي په دې وخت کي سور داوود راغلی او وې ويل چي پلار يې بې ګناه دی زه يې پيژنم

له دې کارنه وروسته يو تن (حامدزی لالی )چي هغه هم لوړ پوړی چار واکی دی ورته راځي او نور يې هم پور ته کوي او ورته ښکنځل کوي خو ملا محمدنسيم کاکو ورته وايي چي له نورو سره که مي هر څه وکړل خوکه خدای پريښودلم تابه ضرور وژنم ځکه چي تا راته ښکنځل وکړل او له دې وينا سره سم يې دهغه بې دينه پر خولاړې ورتوف کړې

په زندان کي دنو موړي چال چلند او دډول ډول شکنجو سره مقاومت يې ونورو بنديانو ته هم ډيره حوصله ورکړه او په محبس کي يې يوه داسي فضا را منځ ته کړه چي ګواکي دلته هم نومړی دمجاهدينو مشري کوي خو ددښمن دډير تعذيبو نو او شکنجو له وجهي دده لاسونو کار پرې ايښی و چي نورو بنديانو بې خد مت کاوو

### په لومړي ځل دکندهار له زندان نه تونل ايستل

داچي نوموړی ډیر تاکتیکي او مبتکرکس وو دتونل ایستلو نقشه یې دځینو نورو خاصو ملګرو سره په ګډه جوړه کړه چي بالآخره یې دلومړي ځل لپاره دزندان له یوه نړیدلي اطاق نه دباندي تونل ویوست او د دیرشوتنو شاوخوا بندیانو په شمول له زندان نه ووتل او په محفوظ ډول تر خپلو ځایو نو وریسده او هغه اسیر مجاهدین چي د سیمې نابلد ول هم له ښارنه دخپلو ملګرو په مټ په خوندي ډول وایستل شوه او خپلو :ورنیو ته ورسیدل.

## ددوهم ځل لپاره دنوموړي دجهادی فعالیت ساحه او ځرنګوالی

نوموړی چي په زندان کي دشکنجولو کبله یې بدن ټوک ټوک شوی وو دملګرو په مشوره او همکاری دڅه وخت دپاره در تداوی لاندي ونیول سو له تداوی او څه ناڅه صحت یابی بعد یې داغوره وګڼله چي خپل مسلح جهاد ته ادامه ورکړي او خپل ملګري منظم او په عملي اقدام لاس پوري کړي دا وو چي دکندهار ښار او شاوخوا سیمو لکه میدان دامان دیخوجه ډنډکي یې ملګري منظم کړل او دخارجي اوداخلي دښمن تر پښو لاندي یې ځمکه بیا سره تبې کړه چي په دې بهیر کي یې ګڼ شمیر شهیدان او زخمیان ورکړل او ډیری ملګري یې وزندانونو ته ولویدل خو دنوموړي غازي حوصله یې نه کړه کمزوري دشهیدانو له کورنیو سره غم شریکي دزخمیانو تداوي او داسیرانو په را خلاصولو کي یې ډیر په میړانه او ایمانداری هغه څه وکړل چي پکار او مناسب وه،

دنوموړي دجبهې ملګري یو تر بله په خپل منځ کي داسي وه لکه دیوې کورنی یا کهول وګړي

مرحوم کاکو په کندهار کي دجها دي خد مت تر څنګ د دوو کلونو را پدیخوا په فراه ولایت کي دهغه ولایت دجهادي مسؤل حاجي یو سف صاحب په غو ښتنه چي دشهید پخوا نی ملګری او همسنګره و په فرا کي هم خدمت پیل کړ چي دهغه ولایت دښار دعملیاتو مشري ور دغاړي سوه نو موړي په ډیر کم وخت کي هلته بی ساري لوی عملیات تنظیم او عملي کړه بمي چاو دني ،تو غندو یز بریدو نه او استشها دي عملیات یې ددښمن په مهمو مرا کزو لکه دولایت مقام محاکم او داسي نورو باندي طرحه اوعملي کړل او دښمن یې لا لهانده کړ

## شهادت یې

په فراه ولایت کي دشاوخوا دوو کلو نو تر خد مت ورسته دا شغال ګرو کفارو په یوه هوایي برید کي چي دشپږو نورو ملګرو په ګډون د ۲۰۱۳ میلادي کال د۵میاشتې په دوهم تاریخ دفراه

ولايت دخاک سفيد ولسوالۍ د(رنج )په کلي کې په دا سي وخت کې سره له ۵ ملګرو د شپې په شاوخوا دوو بجو چې دفرارود مرکز ته په يوې مازدا موټر کې دهدف پرلور روان ول چې

دوه پکې فدايي مجاهدين ول د اشغالګرو د بې پلوټه طيارې تر بريد لاندې راغلل او وخپل اصلي مقصد (شهادت) ته چې دژوند يوازينۍ هيله يې وه ورسېدل بدن يې سوځېدا سره د ۳۹ کلنۍ په عمر ورسيد (انا لله وانا اليه را جعون )او نور يې ددې پا نې دنيا څخه دباقي دنيا په لور مخه ښه وکړه روح دې ښاد او قبر دې دجنت باغيچه وي

## دژوند آرمان يې

شهيد مرحوم به ويل چې زه په ژوند کې درې ارمانه لرم يو له صليبي يرغلګرو نه دګران هيواد افغانستان آزادي او ديوه شرعي نظام جوړيدل دوهم دحرمينو ديدار او حج کول او دريم يې دخدای په لاره کې شهادت چې دوه هغه يې ورته الله تعالی په يوه کال کې نصيب کړل او دريم آرمان يې دنورو همسنګرو ملګرو په څير وقبر ته يو وړ .نوموړي شهيد ترشا ځوک بريښودل

له خدای بخښلي شهيد نه ترشا پلار ،يوه مورکۍ ۲ زامن احسان الله ،اقبال احمد ،بلال احمد ، شبير احمد ،خليل احمد ، وقار احمد او پنځه لورګانې درې ورونه چې يو مشر او دوه يې کشران دي ترشا پريښودل

## جهادی دلګۍ يې

له نوموړي شهيد څخه بعد دده کشر ورورملا محمد ولي (مختار ) دملګرو له لوري دمشر په توګه وټاکل شو او په دواړو محاذونو کې يې پر خارجي او داخلي دښمن دکارنده بريدونو لړۍ هماغسې جاري وساتله چې په هغو کې يې دفراه پر استراليايي ځواکونو فدايي بريد او پر ولايتي ودانۍ ۳ مسلسلې چاودنې اودفراه پر امنيت آمر (صمدک) فدايي بريد چې نوموړی يې له يوه مړژواند حالت اونا معلوم سرنوشت سره مخ کړ ديادولو وړ دي

او جهادي ملګرو يې تر اوسه لله الحمد په خپلو منځونو کې هم هغه صداقت صميميت او متانت ساتلی لکه چې څرنګه وو ۰

# شهیدې قافلې



## شهید ملا محمد حسن (سعادت)

نن بیا د اتلو ، باهمته ، او غیرتي ځوانانو له ډلي یو داسي زړور ځوان، د سره غره زمری او تکړه مبارز در پیژنو چي په میړانه به یې راتلونکي نسلونه افتخار کوي

شهید ملامحمدحسن(سعادت) د عبدالاحد زوی ، د محمد آیاز آکا لمسی ، تقریباً څلور دیرش کاله مخکي (په ۱۴۰۰هق کال) د زابل ولایت مرکز قلات د زیبدې په کلي کي په یو شهیدپاله او متدینه کورنۍ کي د خپل غیرتي پلار د کور پر غولي دې فاني نړۍ ته سترګي راښي کړې.

لمړنۍ زده کړې یې په خپل کلي کي او بیا د قلات مرکز لویه جامعه کي ترسره کړي دي.

شهید سعادت چي د عمر په لحاظ ډیر کشر او په دیني زده کړو بوخت وو ، خو له اسلام او جهاد سره شته مینې په آرام پرې نښود ترڅو خپلو زده کړو ته دوام ورکړي ، بالآخره دې ته یې وهڅاوو، چي د اسلامي امارت د تسلط په مهال د هیواد شمال جهادي لمړۍ کرښې تګاب ، نجراب او استالف ته تشریف یوسي ، ترڅو له خپلو اتلو مجاهدینو وروڼو سره د شر اوفساد په خلاف په جهاد کي برخه واخلي.

خو کله چي پر هیواد صلیبي وحشي کفارو یرغل راووړ ، نوموړی بیاهم بي تفاوته پاتي نه سو، د لمړنیو هغو مجاهدینو په کتار کي وو، کومو چي د صلیبي ځواکونو په خلاف مبارزه پیل کړه ، سعادت په دې لاره کي ډیري ستونزي وزغملې ، د روان جهادي یون په بهیر کي یوځل له خپل ورور – ملاعبدالصمد اخند– سره د ګوړاګیو عسکرو په لاس اسیر سو، چي د مزدورې اداري قاضیانو په اووه اووه کاله بند محکوم کړل، خو داچي شهید سعادت

د ويښ ضمير او ټکړه عزم څښتن وو، دلته يي هم خپل لوړ مورال او حوصله له لاسه ورنکړه، د ورسره ملګرو په ملتيا يي اووه مياشتې وروسته د زابل زندان مات، ځان او ملګرو ته يي په خپلو فولادي مټو نجات ورکړ.

شهيد اتل له زندانه تر راخلاصيدو سمدستي وروسته يوځل بيا د جهاد ډګر ته را ودانګل او له ۴ کاله مسلسلې مبارزې وروسته د همدې ولايت د سيوري ولسوالۍ اړوند د داوېګر په کلي کې يوځل بيا د صليبي يرغلګرو له خوا محاصره او تر يو ساعت کلک مقاومت وروسته د مهماتو د ختميدو له امله د دوهم ځل لپاره د غليم وحشي منګولو ته ولويد چې بيا هم د الله تعالی په فضل تر لږ بند تيرولو وروسته آزاد سو.

شهيد سعادت له آزادۍ وروسته يوځل بيا خپلې سپيڅلې مبارزې ته دوام ورکړ.

ملامحمدحسن په خپل جهادي بهير کې ډيرې سترې سترې لاسته راوړنې درلودې، د خاد د غټو غټو جاسوسانو په شمول د ملي اردو تر افسرانو پورې يي په وار وار په تندريزو بريدونو کې يا وژل سوي او يا هم ژوندي نيول سوي دي.

د بيلګې په توګه: د خاد مدير اسحاق کوچی، د کمانډويانو دوه قمندانان، امير جنايي روح الامين او د ډيرو مجاهدينو قاتل عبدالسلام يادولای سو، چې د نوموړي په عملياتو کې ووژل سول.

شهيد سعادت د امريکايي يرغلګرو له راتګ بيا تر اوسه د ژوند زياته برخه د زابل مرکز قلات په مينځ او شاوخوا سيمو کې له دښمن سره په دوامداره مبارزه وکړه او په لسهاوو واره د دښمن له خوا تعقيب او بې شميره چاپې ورباندې ووهل سوې، خو د لوی څښتن ج فضل او د لرونکې ځيرکتيا په برکت به يي د نجات لاره پيدا کړه.

د شهيد سعادت د نژدې ملګرو د تخميني احصائيه (شميرې) له مخې نوموړي خاص د امريکايانو تر لس زيات ټانګونه په خپل لاس په ماينونو پورته کړي، همدارازيي د داخلي اجيرو عسکرو موټران يي لسهاوو ته رسيږي.

همدا لامل وو چې هميشه د غليم تر ښار لاندې وو، بالآخره د روان هجري قمري کال د ذوالحجې د مبارکې مياشتې په دوهمه نيټه د قلات مرکز د يارکې په سيمه کې د امريکايي ښار ګرې الوتکې په نښه کړ، او ناځوانمردانه ګوذار يي ورباندې وکړ، چې په نتيجه کې خپله شهيدمحمدحسن سعادت او ورسره دوه ملګري هريو سنګرمل او رحمت الله هجران د شهادت عالي مقام ته ورسيدل.

قرباني يي قبوله، ياد يي تل او لار يي له لارويو ډکه. نحسبه کذلک والله حسيبه

انالله وانااليه راجعون

یادونه : د نوموړي پر مېنه یوه لور او یو زوي مسط الله پاتي دي، په همدې لاره کې یې یو ورور سیدمحمد مؤمن هم په شهادت رسیدلی دی.

## شهید ملاعبدالمنان (اسحق)

شهید ملاعبدالمنان (اسحق) د حاجي غازي الدین مرحوم زوي د زابل ولایت د شاه جوي ولسوالي د عمراني د کلي اوسیدونکی ، میانه قد ، غنم رنګه د تورو ستر ګو لرونکی ،صابر ،باعزمه ،مستقیم او مدبر ځوان وو، هوښیار تیا او زړه سواندي یې ځانګړي صفات وو.

نوموړي په ۱۳۸۵هق کال دې فاني نړۍ ته ستر ګې وغړولې ، د اوو کالو په تیریدو سره یې پلار مرحوم د خپل کلي د مسجد ملاامام ته د درس لوستلو لپاره ورووست ، لمړنۍ زده کړې یې په همدې خپل پلرني کلي کې ترسره کړې، وروسته یې بیا د نورو زدکړو لپاره د دې ولایت مختلفو سیمو ته سفرونه وکړل .

کله چې روسانو پر افغانستان یرغل وکړ؛ نو ده د جهاد لپاره ملاوتړله او د دې سیمې له مشهور جهادي قومندان (حسن خان) سره په جبهه کې یوځای سو.

دغه مهال د نوموړي د ځوانۍ تازه وختونه وو، ډېره یې لا پوره نه وه اغلي له همدې کبله هغوی نوموړی شهید پخپل معسکر کې د زخمیانو د درملنې لپاره وګماری ، خو کله چې یې ډېره پوره راغله ،بیا یې له روسانو سره په مخامخ جګړو کې په ډېرو میدانونو کې برخه واخیسته چې په پایله کې یې یو لاس ژوبل او له کاره ولویدی.

کله چې روسان په ټیټو ستر ګو له هیواده ووتل؛ نوموړی پر خپل کور کښینستی او د دیني درسونو لړۍ یې بیا پیل کړه.

خو چې د شر او فساد په وړاندی د عالیقدر امیر المؤمنین تر قیادت لاندی قیام پیل سو؛ نوموړی هم د دې قیام له لومړنیو کسانو څخه وو او له اتل غازي ملا نورالله (نوري) او بیا له شهید ملاغلام نبي (جهادیار) سره ملګری سو، خپلې جهادي مبارزې ته ئې ځان وقف کړ.

شهید ملاعبدالمنان د دې ترڅنګ چې د خپل عمر زیاتره برخه به یې په سنګر کې تیروله ، د اسلامي امارت په ټول دوران کې لمړی په شاه جوي ولسوالي، بیا په ګردیز، میدان ښار، لغمان ، بغلان ،بامیان ، مزارشریف او کندوز کې په خدمت بوخت وو، د الله تعالی د ورکړې ښه استعداد له مخې د مخابرو انجینیر هم وو، تل به د زخمیانو په تداوي ، د مخابرو په جوړولو او د سنګر د مجاهدینو په خدمت اخته وو، الله تعالی د خدمت ستره حوصله ورباندې لورولې وه.

د صليبي يرغلگرو له راتګ سره سم د مزار شريف د سقوط په ورځ د دوستم له بدنامو مليشو سره اسير سو، وروسته د شبرغان کرغېړن زندان ته وليږدول سو، همالته يې شاوخوا يو کال د زندان سختې وګاللې، خو چې کله راخلاص سو، سمدستي يې د لومړنيو فعالو مبارزينو په ملتيا د الحاج شهيد ملاروزي خان (عاکف) او شهيد ملامحمدګل (بشير) سره يوځاي د سره غره له لمنو پر دښمن پريکنده بريدونه پيل کړل، وروسته بيا له شهيد ملاحکيم الله (موسی) سره – چې دشاجوي د طالبانو دنظامي چارومسئول و؛ ملګری سو، د څه مودې لپاره د يادي ولسوالۍ د نائب مسئول په توګه هم پاتې وو.

د امريکايي يرغل په دوران کې يې نور تخنيکي درسونه هم تعقيب کړل چې وروسته د ډېرو مجاهدينو د تخنيکي چارو خورا ماهر استاذ وو، په زابل او غزنی کې چې به د چا وسائل لکه مخابره، رپيټر ، موټرسيکل او داسی نور وسائل خرابيدل؛نو ورغ به يې تر ( شهيد اسحاق) پوري وو، د ماينونو، موټربمونو او نور ډول ډول وسائطو د جوړونې پوره استاذ وو.

د بېلګي په ډول: له نن څخه دوه کاله وړاندي د مني اخيري شپې ورځې وې چې د کرامت په نامه يوه استشهادي مجاهد – چې د همدې محاذ غړی و – د شاجوي ولسوالۍ د قرباغو په سيمه کې پر صليبي يرغلګرو يو بې ساري فدايي موټربم بريد ترسره کړ، درې زغروال ټانګونه يې له مينځه يووړل او زيات شمير غربي لنډغر يي د جهنم کندې ته وغورزول، هغه په لوړ تخنيک جوړسوی موټر بم هم د شهيدملاعبدالمنان (اسحاق) په لاس جوړ سوی وو.

نوموړی د اسلامي امارت له لوري د شاجوي ولسوالي د ټولو مجاهدينو لپاره د ماينونو د تهيه کولو مسؤل وو، ځکه پوره ماهر، محطاط، صابر او مخلص ځوان وو.

بالآخره د ۲۰۱۳م کال د لسمې مياشتې په ۴ نېټه چې د ۱۴۳۴هق کال د ذوالحجة له لمړی نېټې سره سمون خوري، د شاجوي ولسوالي د بندکاريز په کلي کې په داسي حال کې د امريکايي بې پيلوټه الوتکې په بمبار کې له ۶ نورو ملګرو سره يوځاي په شهادت ورسيد چې د ماينونو په جوړولو بوخت وو، روح دي يې ښاد او ياد دي يې تل وي. انالله و انااليه راجعون

يادونه : د شهيدملاعبدالمنان اسحاق څخه يوه مور ، درې زامن، دوې لوڼې ، يوه ميرمن، او درې وروڼه پاتې شول.

## شهید ملاعنایت الله (شرافت)

شهید ملاعنایت الله (شرافت) د حاجي کمال اکا زوی ، د زابل ولایت د شاه جوي ولسوالي د قرباغو د جهانګیر د کلي اوسیدونکی و، چې په ۱۴۰۸ هق کال کی یې دې فاني نړۍ ته سترګې وغړولې، لمړنۍ زده کړې یې په خپل کلي کي د مسجد له ملا امام څخه ترلاسه کړې ، وروسته یې بیا د ګاونډي هیواد پاکستان د بلوچستان ایالت په مختلفو مدارسو کي تر منځنۍ دورې کتابونه ولوستل، خو له دیني زده کړو سره سره به یې د جهاد سنګر هم پاللو، نوموړی میانه قد، ځیرک ، د تورو سترګو ، پیچلو ویښتانو ، ښائسته اخلاقو، او ګل ځوانۍ څښتن وو، شجاعت او اخلاص یې ځانګړي خویونه وو، له هرچاسره د نیکي رویې او ښه سلوک په وجه یې د خلګو په زړونو کي ښه ځاي درلود ، شهید ملاعنایت الله که څه هم د عمر په لحاظ تنکی او د ځوانۍ په منګ نوی رسیدلی ځوان وو، د صلیبي یرغلګرو له راتګ وروسته د دې جوګه سو چې د جهادي بهیر د لارویانو مل او د یرغلګرو یادهغوي د ګوډاګیانو په خلاف خپله سپیڅلې مبارزه ژوندۍ وساتي، خو نوموړي په دې مقدس سفر کي ، په خپله تنکۍ او ګل ځواني د غربي یرغلګرو پر وړاندي نه هیریدونکي عملیات ترسره کول، لهذا د اسلامي امارت له لوري د زابل د شاجوي مسؤل ، نوموړي ته په خپل محاذ کي د یوه ګروپ سرپرستي ور وسپارله ، چې له همدې سره د دیني زده کړو سلسله هم ځیني پاته سوه.

شهید شرافت په ډیره کمه موده کي داسي کارنامې ترسره کړې چې د دښمن توجه یې هم ځانته راجلب کړه

د مثال په توګه ، په ۱۴۳۳ هق کال یې د شاجوي د جمالخیلو د اربکیانو پوسته په ډیره ماهرانه توګه له مینځه یووړه ، لس تنه اربکیان په داسي شکل په کي ووژل چې یو یې هم په ځان نه سو خبر، د هغوي اسلحې او امکانات یې ټول له ځان سره یو وړل، له دې وروسته د صلیبي یرغلګرو تر سخت تعقیب لاندي شو، دوه ځله د دښمن له سختې محاصرې او عملیاتو بریالی راووت.

بالآخره په کال ۱۴۳۴ هق کي د ذوالقعدې په میاشت کي د شاجوي ولسوالۍ د جعفرو په کلي کي د صلیبي یرغلګرو په هوایي برید کي په شهادت ورسید، انا لله و انا الیه راجعون

یادونه : یوه میرمن ، دوې لوڼې، پلار ، مور، او یو ورور ورڅخه پاتي شوي دي .

**ذبیح الله مجاهد**

# ځوشبې له خپل ولس سره

**السلام علیکم ورحمته الله وبرکاته!**

لاندې ځینې سوالونه درسره شریکوم ، غواړم د اسلامي امارت د واکمنۍ پرمهال د مطبوعاتو په اړه را ته معلومات راکړی، په دې سره به موملت ته رښتینې معلومات ورکړي وي.

١ :د طالبانو په وخت کې چاپي رسنۍ د څومره په تعداد وي، او د څومره په تعداد مجلې، ورځپاڼې او اونیزې فعالې وي او کومې چې فعالې وې تنها په مرکزکې خپروني لرلې او که په ولایاتو کې هم وې، محتوا یې څه وه ،مسول مدیریې څوک او د څه په نوم وي؟ نیکمل

ځواب: وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته !

په لاندې ډول ځینې هغه معلومات درته لیکم چې اوس زما په لاس کې دي.

د اسلامي امارت لخوا د یرغل نه مخکې چاپي خپروني:

دافغانستان اسلامي امارت دهیواد په پلازمېنه کابل ،ننګرهار، کندهار، بلخ او هرات کې رسمي حکومتي اخبارونه فعال وساتل اوپه نورو ولایتونوکې یې (۹) عنوانه نوي اخبارونه خپرول. همدارنګه دنورو متفرقه کتابونو او رسالو پرچاپ یې برسیره دمختلفو ادارو له لوري په منظم ډول (۱۱) یوولس عنوانه میاشتنۍ اودوه میاشتنۍ مجلې په عصري کمپیوټري سیستم خپریدې.

شریعت اونیزه (په اونۍ کې دوه ځله خپریده)، هیواد ورځپاڼه، انیس ورځپاڼه، په انګلیسي ژبه کابل ټایمز اونیزه، کتاب میاشتنۍ مجله دکمکیانو انیس روغتیا مجله دباختر اژانس خبري بلوټن بیدار ورځپاڼه په مزارکې، طلوع افغان اوونیزه په کندهار کې، ننګرهاراونیزه، وړانګه په پکتیا کې مهالنۍ اخبار، پیام اسلام په هرات کې، خلافت مجله، کندهار مجله، الاماره عربی او انګلش مجله، الطالب عربی مجله، خوست مجله، کنړ مجله او...... )، چې په دې کې (۱۲) مجلې وي، (۹) اخبارونه، هغه چې فعالې وي دا اسلامي امارت تر کنټرول لاندي ټول هیواد ته په منظم ډول استول کیدې، په هرولایت کې یې داطلاعاتو او کلتور په ریاستونو کې دتوزیع ځانګې درلودې چې ټولو دولتي او غیر دولتي ادارو، پلورنځایونو، ګډونوالو او مینه والوته رسیدې، له دې جملې نه (۸) مجلې او اونیزې په مرکز کې خپریدې او (۱۲) مجلې او اونیزې په ولایاتو کې خپریدلې، محتوایې، دهیواد علیا ګټې، اسلامي ارزښتونه، ریښتوني خبرونه، حماسي شعرونه او دهیواد دفرهنګ او ادب لپاره خدمت کول وو، مسئول مدیران یې په لاندې ډول وو.

۱ـ شریعت اونیزه: مسئول مدیر (مولوي عبدالرحمان) اوبیا عبدالرحیم ثاقب

۲ـ هیواد اونیزه: مسئول مدیر ملا عبدالحنان همت، بیا (اسدالله حنفي)

۳ـ انیس اونیزه: مسئول مدیر ملا خادم احمد حقیقي.

۴ـ کابل تایمز مسؤل مودیرلومړی صدیقمل ،عنایت الله کاکازاده ،سهیل شاهین اوبیا تسل وو

۵ـ طلوع افغان اونیزه، مولوي عبدالرحما ن هوتکي، میرویس باوري او وروسته احمدالله وثیق

۶ـ پیام اسلام اونیزه هرات: مسئول مدیر (اوس مې نوم هیر ده)

۷ـ ننګرهار اونیزه : مسئول مدیر (شفیق الله مملوال وروسته استاد فضل ولي ناګار)

۸ـ بیدار ورځپانه، بلخ مسول مدیر( اوس مې نوم هیر ده )

۹ـ کندهار ، میاشتنۍ مجله ،مسئول مدیر (سلیمان اغابهیر)

۱۰ـ کنړ، مجله مسول مدیر: مولوي عبدالاحد حقاني

۱۱ـ خلافت مجله مسئول مدیر ملا محمدوزیر حامد وروسته سردارمحمد شکیب

۱۲ـ الطالب عربي مجله ، کندهار

۱۳ـ الاماره ،عربی او انګلش مجله ، کندهار

۱۴ـ کتاب مجله مسول مدیر نظرمحمد مطمین

۱۵ـ دکمکیانو انیس مهالنۍ مجله

۱۶ـ دروغتیا مجله

۱۷ـ باختر اژانس خبري بلوټن (ورځنۍ خبري رساله)

۱۸ـ خوست دوه میاشتنۍ مجله

۱۹ـ هلمند جریده

۲۰ـ وړانګه ، په پکتیا کې مهالنۍ مجله

---

۲ :رادیو څوساعته خپروني لرلي کوم مطالب یې خپرول اومسول مدیریې څوک وو؟

راډیويي او صوتي خپروني

ځواب: داسلامي تحریک او اسلامي امارت په زمانه کې درادیو ګانو تعداد (۱۴) شاوخوا ته رسیدې ).

دکابل دشریعت غږ رادیو ،چې په مختلفو ژبو (پښتو ،دری، ازبکي، بلوچي،اردو ،او انګلیسي ) یې په خبري سرویس سربیره سیاسي تبصرې ،دیني ،معلوماتي ،روغتیایي ادبي او نورې بوختوونکې خپرونې درلودې.همداراز په مختلفو ولایتونو کې راډیوګانې

فعالې وې چې ټول ټال (۱۲) ساعته خپرونې یې لرلې ، اسلامي، سیاسي ، ټولنیزې، او فرهنګي مطالب یې خپرول ، چې دهیواد او نړۍ وضعیت به یې تر تحلیل لاندي نیوه او د اسلامي امارت د پالیسۍ ښه ترجماني یې کوله.

باختر اژانس لوی ریاست ،عمومي رئیس یې لومړی مولوي عبدالسلام مسلم، بیا مولوي محمد یعقوب قانع او وروستۍ یې ملا عبدالحنان همت وو ، په ټولو ولایتونو کي یې مدریتونه لرل او د ټول هیواد دخبرونو ټولول او بیا دیوه خبري سرویس په ښه ټولو داخلي او خاریجي رسنیوته د تلګراف ،ټلیفون ،مخابري او په ورستیو کي د نیټ له لاري رسول

په ولایتو کې فعالې راډیوګانې:

په مرکز او ولایتونو کې د کابل په مرکزي پنځه سوه کیلو واټه راډیو سربیره طالبانو خوارلس پاېې غیرفعال راډیو سټیشنونه فعال کړل حال دا چې تر طالبانو مخکې یوازې څلور سټیشنونو فعالیت درلود

د کابل د شریعت ږغ راډیو ، د کندهار رادیو ، د ننګرهار رادیو ، کنړ راډیو ، د ګردیز رادیو ،دغزني راډیو ،بلخ راډیو ،هرات راډیو ،زابل راډیو ، هلمند راډیو او کندز راډیو

کابل د شریعت غږ راډیو عمومي ریس ملا محمد اسحاق نظامي وو

د کندهار د شریعت غږ رادیو مسئول (ملا عبدالحی مطمین- ملا عبدالاحد جهانګیروال )

د ننګرهار راډیو

د هرات راډیو

د ګردیز راډیو

د زابل راډیو

د کنړ راډیو

د هلمند راډیو

دخوست راډیو

دغزني راډيو

بلخ راډیو

کندزرا ډیو

۳:داطلاعاتواوفرهنګ ریس څوک وو ، او په کوم کال کې ورته دادنده سپارل شوې وه ،ایاهم دایوکس ترپایه پورې ریس واوکه بل کس هم دریاست راغلی دی؟

ځواب: ستاسو سوال ممکن لږناسم وي ، دهیواد په کچه خو داطلاعاتو او کلتور لپاره وزارت فعال وو او داطلاعاتو او کلتور لومړی وزیر محترم ملا امیر خان متقي وو ، چې وروسته له هغه بل وزیر محترم ملا قدرت الله جمال داطلاعاتو اوکلتور وزیر مقرر شو .

او د ټولو ولایاتو په کچه د اطلاعاتو اوکلتور ریاستونه فعال او هریو ځانګړی رئیس درلود.

۴:خپلواکه رسنۍ موجودې وې اوکه دحکومت تر کنټرول لاندې یې نشرات کول؟

ځواب: نه ! بالکل خپلواکه رسنۍ هغه مهال نه وي ، ټولو رسنیو د اطلاعاتو او کلتور وزارت ترچتر لاندي فعالیت کا وه ، البته دا دافغانستان په تاریخ کې پخوانی میراث وو چې رسنۍ ټولې د حکومتونو تر چتر لاندي پاتي شوي وي او موږ هم په هغه حال وساتلې .

۵ :که دانټرنټ په مخ ،یا دکوم چاپ شوي کتاب په بڼه درته په دې اړه معلومات وي نومهرباني وکړئ راسره یې شریک کړئ؟

ځواب : زموږ دټولو نشراتو ، اطلاعاتي خدمتونو ، او پرمختګونو په اړه داسلامي امارت دهغې زماني آریشفونه که پیدا کولای شئ په هغو کې لا ډیرمعلومات په لاس درتللای شي ،په هغه وخت کي ډیر کتابونه چاپ شول او ممکن په عامه کتابتون اوطلاعاتو او کلتور وزرات او ولایتي ریاستونو کې زموږ د نشراتو کلکسیونونه موجود وي

.

# ددعوت،ارشاد،جلب اوجذب کميسيون

**سادات**

**دنومبراواکتوبرمياشتنی راپور**

دروان (۲۰۱۳م) کال دنومبر په مياشت کي هم دتېرومياشتوپه شان داسلامي امارت ددعوت ،ارشاد،جلب اوجذب کميسيون په هڅواودځـايي مجاهدينوپه ملاتړ دافغانستان په مختلفوولاياتوکي ۵۹۲تنه چي دکابل اداري اړونديبلابيلوارگانونوکي په کاربوخت وو دحقايقوپه درک کولوددغه فاسداوګوډاګي رژيم څخه راووتل اوداسلامي امارت دمجاهدينوسره يوځای شول .

ګرانولوستونکوهمداهم دتسليم شويوکسانوتفصيلي مياشتني ارقام :

۱:پروان۸تنه‌عسکراپيکااکلاشينکوف،
۲ : پکتيکا۲۰تنه‌عسکر،
۳:کندز۴تنه‌عسکر،
۴:ننگرهار۴۰تنه‌عسکر،
۵:بدخشان۲۵تنه‌عسکراو۱۳ميله‌وسله،
۶:پکتيا:۷تنه‌عسکر،
۷:لغمان۱۷۴تنه‌عسکر،
۸:لوگر۳تنه‌عسکر،
۹ : بغلان۶تنه‌عسکر،
۱۰:جوزجان۲۷تنه‌عسکر،
۱۱:سرپل ۱۸۲تنه عسکر
۱۲:دايکندي ۴۷تنه عسکر
۱۳:غزني ۶انفره عسکر
۱۴:ارزگان ۱۰تنه عسکراپيکااکلاشينکوف

۱۵: هلمند۹تنه عسکر ۲کلاشینکوف ۲موترسایکلونه ،اثقیل اوامخابره

۱۶: فراه ۸نفره عسکر،۲پیکا،او۲کلاشینکوفونه

۱۷: هرات ۲نفره عسکر،۲ثقیلان ،۴کلاشینکوفونه ،اتوپنګچه ،۴مخابرې اواړینجرموټر،

۱۸: کندهار۴نفره عسکر،

همدارازداکتوبردمیاشتي په بیلابیلوورځوکي دپکتیکاولایت په مختلفوولسوالیوکي ۱۵۰تنه پولیس اواربکیان ،کندوزکي ۱تن پولیس ،ننګرهارکي ۳۶تنه پولیس ،پکتیاکي ۱۶تنه پولیس اواربکیان ،بغلان کي ۱۰۸تنه پولیس اواربکیان ،بلخ کي ۷تنه پولیس ،جوزجان کي ۸تنه پولیس اواربکیان ،کندهارکي ۴تنه پولیس ،ارزګان کي ۱۹تنه پولیس اواربکیان ،سرپل کي ۱۱۵تنه داردواوپولیسوعسکراواربکیان ،غزني کي ۴تنه پولیس ،هلمندکي ۱۵تنه پولیس اوپه فاریاب ولایت کي ۲۲تنه پولیس اواربکیان دکرزي دبلواکي اداري څخه رابیل اودافغانستان داسلامي امارت داتلومجاهدینوسره یوځای شول .

داسلامي امارت داتلومجاهدینوسره یوځای شووبادرکه هیوادوالو مختلفه النوع لویې اوورې وسلې ،مخابرې ،وسایط اویوزیات شمېر مهمات مجاهدینوته وسپارل .

دکابل دمنفوررژیم څخه راجلاشوواوداسلامي امارت له مجاهدینوسره یوځای شووهیوادوالووعده وکړه چې نوربه دخپل ددین اووطن دخارجي اوداخلي مزدورانوسره هیڅ رازتعلق نه ساتي ،دخپل مظلوم ولس اومجاهدینوورونوسره به همکاري کوي ،ترڅولوی خدای جل جلاله ژرترژره زموږلـه ویـاړلي خاوري څخـه دکفر،فسق ،،اشغال ،فحشاء اوګمراهیوکرغیرن تغرتپول کړي اودمسلمانانودخوښي یوسوچه اسلامي واکمني رامنځته کړي چي دټول افغانان پرې راټول شي .

داسلامي امارت ددعوت ،ارشاد،جلب اوجذب کمیسیون مشرتابه دوی ته هرکلی ووایه ،انعامونه اوجایزې یې ورکړې اوددوی همدانیک اقدام یې ډیروستایه چي دیرغلګرواولاسپوڅي رژیم څخه یې راووتل اودافغانستان اسلامي امارت دمجاهدینوسره یې خپل پیوستون اعلان کړ .

دافغانستان اسلامي امارت دګران هیوادڅخه دوحشي یرغلګرودشړلواوداسلامي اوملي نظام درامنځته کولوپه موخه دران سپیڅلی مقاومت په لړکي دنظامي فعالیت ترڅنګ سیاسي ،فرهنګي ،تعلیمي اودعوتي هڅي هم ګړندۍ کړي دي داسلامي امارت غښتلي مجاهدین دپراخوپوځي لاسته راوړنوڅخه علاوه هره میاشت دهیوادپه بیلابیلوولایتونواوولسوالیوکي ددعوت اوارشادکمیسیون په هڅولکه پورته چي ذکرشول دکابل اداري څخه په سلهاووتنه کارمندان راوزي اوداسلامي امارت غیږي ته پناراوړي .

# جنګي جنايتونه (نومبر)

سيدسعيد

دروان (۲۰۱۳ ،ز) کال دنومبرد مياشتي په ۴مه نيټه داخلي عسکرود لغمان ولايت دمرکزپه تفاک سيمه کي دچاپې پرمهال څلورتنه ولسي وګړي بنديان کړي دي.

دنومبرپه ۵مه داروزګان ولايت دهراود ولسوالۍ دلونډياني په سيمه کي داربکيانو قومندان (شاه محمد ) يوملکي وګړی شهيد کړی دی.

دنومبرپه ۷مه دفراه ولايت دخاکسفيدولسوالۍ په ديوال سرخ سيمه کي داخلي عسکرويوسل وپنځوس تنه ولسي هيوادوال بنديان کړي اوشپېته تنه مخوراوسپين ږيري يې چي خپلي قرارګاه ته يې ورغوښتي ووشکنجه کړي دي. دسيمه ييزواوسيدونکوله خولې عسکر چي هرڅوک ووينې نيسي يې اوګواښ ورته کوي که طالبان هغه عسکرچې دتېري ورځي په جګړه کي يې نيولی ؤ ازاد نه کړي اويايې ووژني نو غچ به يې له همدي ولسي وګړو څخه واخلي.

دنومبرپه ۸مه دکندزولايت دعلي اباد ولسوالۍ په لال ميدان سيمه کي اربکيانودرې کسه ملکي وګړي بنديان کړي دي.

دنومبرپه ۸مه اشغالګرو عسکرو دچاپې پرمهال دبلخ ولايت د چهاربولک ولسوالۍ دسالارتېپې له ناصرې سيمي څخه درې تنه ولسي هيوادوال دبنديانوپه توګه وړي د ي.

دنومبرپه ۱۰مه یرغلگروځواکونود میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ دتنګي درې له رنجي خېل سیمي څخه دوه تنه ملکي هیوادوال (پیرګل اوزوری یې )بندیان کړي دي.

دنومبرپه ۱۳مه دفراه ولایت د پشترودولسوالۍ په کندرسیمه کي داخلي پوځیانویوبزګر(غلام محمد )شهید کړی دی.

دنومبرپه ۱۳مه د لوګر ولایت دمحمداغې ولسوالۍ په زرغون ښارسیمه کي دیرغلګرودبې پیلوټه الوتکي په برید کي دښوونځي یونهه کلن زده کونکی (عصمت الله )چي په لوبوبوخت ؤشهید شوی دی، دلوګرولایت دمعارف ریاست هم په دغه برید کي دیوه تن زده کونکی وژنه تائید کړې اوغندلې ده.

دنومبرپه ۱۵مه دکندهارولایت د میوندولسوالۍ په مندوزو سیمه کي داخلي عسکرویوسپین ږیری شهید کړی دی.

دنومبرپه ۱۷مه داخلي پوځیانودزابل ولایت مرکزته نږدې دجلدک داغاصاحب دمدرسي یو لس کلن طالب (امان الله) چي مدرسې ته روان ؤشهید کړی دی.

دنومبرپه ۱۷ مه اربکیانو دپکتیکاولایت دیحی خیل ولسوالۍ په ګوډلوکلي کي یواویاکلن سپینږیری چي جومات ته روان ؤشهید کړی دی.

دنومبرپه ۱۷مه یرغلګروځواکونود بلخ ولایت دخاص بلخ ولسوالۍ په وزیراباد سیمه کي دچاپې پرمهال دوه تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي.

دنومبرپه ۱۸مه دپکتیاولایت دخیرکوټ ولسوالۍ په ملیزوسیمه کي اربکیانو یوپوسته تخلیه کړه ،دسیمه ییزوخلګودوینا په اساس اربکیانو دپوستې ترپرېښودلووروسته په دغه سیمه کي مځکني ماینونه ځای پرځای کړل کله چي دوی ولاړل همدا ماینونه پرماشومانووچاودل چي پنځه تنه پکي شهیدان اودوه ژوبل شول.

دنومبرپه ۱۹مه دکندهارولایت د بولدک ولسوالۍ دناوې داخترزو په کلي دیرغلګرو په هوایي برید کي دوه نفره ملکي هیوادوال (عبدالمنان اوروزي خان)شهیدان شوي دي.

دنومبرپه ۱۹مه نیواکگروځواکونو دکندهارولایت د میوندولسوالۍ دزرزدي په سیمه کي دچاپې پرمهال یوماشوم اودوه تنه ولسي وګړي چي یویې تازه له حج څخه راغلی ؤې اسیران کړي دي.

دنومبرپه ۱۹مه یرغلګروځواکونو دشپنیوعملیاتوپه لړکي د ننګرهارولایت دبټي کوټ ولسوالۍ په ډاګه سیمه کي چاپه وهلې ، دوه کسه ملکي هیوادوال یې شهیدان کړي نوي (۹۰) تنه یې په یوه کلاکي تړلي اویوشمېرنوریې سخت وهلي دي همدارازیرغلګروعسکروپه دغه چاپه کي دتلاشۍ پرمهال خلګوته زیات مالي تاوانونه هم رسولي دي.

دنومبرپه ۲۰مه دنورستان ولایت نه د وانت وایګل ولسوالۍ په دیګل کلي کي یرغلګروځواکونو په یوه جنازه بمبارکړی ،په بمبارکي شپږتنه ولسي وګړي ( عبدالحی، سفر، نجیب الله، نورالرحمن او اسمعیل )شهیدان شوي دي.

دنومبرپه ۲۰مه دهلمندولایت د ګرشک ولسوالۍ دنهرسراج په یخچال سیمه کي یرغلګرو دچاپې پرمهال یوملکي وګړی شهیدکړی اودوه تنه یې بندیان کړي دي.

دنومبرپه ۲۲مه نیواکګرودزابل ولایت د مرکزاړوندپه دیوالک مانده اوخلاسیمه کي دتلاشیوپرمهال دخلګواوه عرادې موټرسایکلونه اودوه تنه ولسي هیوادوال له ځان سره وړي دي.

دنومبرپه ۲۳مه داروزګان ولایت د چوري ولسوالۍ دخوشکدیرکوتل په سیمه کي داربکیانوقوماندان دوه تنه ولسي هیوادول (حضرت الله اوعبدالرؤف )شهیدان کړي، دځایي اوسیدونکودویناله مخي یادوشوکسانودګوزڼ ضد واکسین کمپیان کي په رضاکارانه توګه خدمت کاوه چي داربکیانوقوماندان (قدیم) دطالبانوسره داړیکودرلودوپه تورله منځه وړي دي.

دنومبرپه ۲۳مه اشغالګروځواکونود ننګرهارولایت د خوګیانو ولسوالۍ دمملي په قیقوم خېل سیمه کي یو مسجد بمبارکړی عیني شاهدانورسنیوته ویلي چي په دغه بمبارکي اووه تنه ولسي وګړي شهیدان شوي اوجومات هم له منځه تللی دی.

دنومبرپه ۲۴مه اشغالگرود میدان وردګ ولایت د نرخ ولسوالۍ په دیندوسیمه کي دچاپې پرمهال خلګوته دمالي زیانونورسولوترڅنګ یوملکي هیوادول شهیدکړی دی .

دنومبرپه ۲۲مه اشغالګروعسکرودشپنیوعملیاتوپه لړکي دلوګرولایت دپل علم مربوط په داودخیل سیمه کي چاپه وهلې، کورونه یې تلاشي کړي اوترتلاشۍ وروسته یې درې تنه ملکي هیوادول له ځان سره دبندیانوپه توګه وړي دي.

دنومبرپه ۲۷مه دهرات ولایت د شینډنډولسوالۍ دزیرکوه په سیمه کي داخلي پوځیانودچاپې پرمهال دوه تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي.

دنومبرپه ۲۷مه اربکیانود کندز ولایت په چاردرې ولسوالۍکي یوولسي هیوادوال چي بزګري یې کوله تروهلوډبلووروسته شهیدکړی دی ، دغه پیښه دکندورامنیه قوماندان سرورحسیني هم تائیدکړې ده.

دنومبرپه ۲۷مه رسنیوخبرورکړچي:له تېرودروورځوراهیسي داخلي عسکرودهرات ولایت د شینډنډولسوالۍ دعزیزاباد اوفرقي ترمنځ پرغزیدلي عمومي لاره دولسي خلګوڅخه دوه سوه (۲۰۰) موټرسایکلونه اوپنځوس(۵۰) عرادې موټر په زور اخیستي دي .دهمدې پیښې علت تراوسه نه دی په ډاګه شوی.

دنومبرپه ۳۰مه د جوزجان ولایت د اقچې ولسوالۍ په سرخ کلي باندي نیواکګروځواکونویرغل کړی ،خلګوته یې دتلاشۍ پرمهال مالي تاوانونه رسولي اوپه اخرکي یې دهمدې کلي له مدرسې څخه درې تنه طالب العلمان دبندیانوپه توګه وړي دي.

دنومبرپه ۳۰مه دکندهارولایت دمیوندولسوالۍ دقلعه شامیرپه سیمه کي داخلي عسکروله خپلي قرارګاه څخه توغندۍ توغولي ، یوتوغندی په سیمه کي دحاجي نادراکاپه کورلګیدلی چي له کبله یې دښځواوماشومانوپه ګډون اووه تنه ژوبل شوي دي.

مأخذونه:[بي بي سي راډیو ،ازادي = ،افغان اسلامي اژانس ،پژواک ،روهي ویبپاڼه ،لراوبر= ،نن ټکی اسیا=اوبینوا=]

# داسلام او مسلمانانو سره

# دجنرال السيسي دا دومره دښمني ولې؟




په نړيوالو رسنيو کې راغلي دي چې دمصر دفوځ لوي درستيز جنرال السيسي مسلمان نه بلکې يهودي دی.

دمصر په منتخب ولسمشر محمدالمرسي دفوځ له لورې دتر سره شوې کودتا په نتيجه کې چې دمحمدالمرسي اداره ړنګه شوه نو دسترې محکمې مشر قاضي عدلي منصور دعبوري ولسمشر په صفت وټاکل شو، عدلي منصور خو هرچا ته معلوم دی چې دسبطي عيسوي فرقې سره تړاو لري، دا فرقه خپل ځان عيسويان ګڼي خو عام عيسويان وايي چې دا فرقه عيسوي نه بلکې ديهودو يوه کوچنۍ ښنه ده، عدلي عيسوي وي او که يهودي خو نامسلمان دی او نامسلماني يې ښکاره ده خو اوس چې دفوځ دلوي درستيز جنرال السيسي په اړه په رسنيو کې څه خپاره شوي دا ډېر حيرانونکي او دردونکي دي، په نړيوالو رسنيو کې راغلې چې دجنرال السيسي مور مراکشۍ يهودۍ مېرمن وه، نوم يې مليکه تيتاني و چې په ۱۹۵۸ کې ورته دمصر تابعيت ورکړل شوی و، سره له دې چې مليکه تيتاني مصرۍ يهودۍ وه خو دغاصب اسرائيلي دولت سره يې جوړه رابطه وه ځکه چې ورور يې چې عوری صباغ نومېدلو په اسرائيلي دولت کې دښونې وزير و.

دالسيسي دپلار په اړه په رسنيو کې څه نه دي راغلي داسې ښکاري چې هغه به مشهور شخص نه و نوځکه يې په اړه رسنۍ څه نه وايي، اصل هدف داسرائيلو سره داړيکو او ورته دوفادارۍ خبره راښکاره کول و نو ځکه يې يوائې دده دمور او ماما يادونه کړي او ويلې يې دي چې جنرال السيسي يهودي دی.

دالسیسي په لاس دمحمد المرسي ددولت ړنګېدو نه پس چې دالسیسي په حکم فوځ دمحمد مرسي په پلوی کې دلاریون کوونکو له ډلې څخه د ۴ زرو نه تر ۵ زرو پورې مسلمانان شهیدان او ۲۵ زره ټپیان کړل چې ګڼ شمېر پکې معذور شول ،د ۱۰ زرو نه زیات یې زندانونو ته واستول ، په زرونو مسلمانان یې ژوندي ور ک کړل ،د ۴۵ زرو علماءو جوماتونو ته په ټللو اوپه ټول هېواد کې یې په ۱۳ زرو جوماتونو کې دجمعې په لمونځ باندې بندیز ولګولو.

یهودیان چې دفلسطیني مسلمانانو سخت دښمنان دي جنرال السیسي خپله دا دښمني هم پټه نکړه ای شوه ،دکودتا کولو او دواک دتر لاسه کولو نه سمدستي وروسته دمحمد المرسي له لورې دغزی دمسلمانانو پرمخ پرانستل شوې ټولې دروازې یې وتړلې،او دمصر رفح ښار ته به چې دغزې مسلمانان دځمکې لاندې دتونلونو له لارې راتلل ،دهمدې لارې به یې دواګانې او غزایې مواد وړل او همدا دځمکې لاندې جور تونلونه دنړۍ سره دغزې دتړلو یواځنۍ لار ده ،سیسي دا تونلونه هم په ډېرې بی دردۍ ړنګ او مصر ته یې دفلسطیني مسلمانانو پرمخ دراتلو ټولې لارې وتړلې .

دمصر اوبوته را داخل شوي ۵ کب نیونکي فلسطنیان مصر ي فوځ ونیول ،محاکمه یې کړل او څو کلونه قید یې پرې هم وخېجولو ، دا دفلسطیني مسلمانانو سره دالسیسي ستره دښمني ده ګینې په نړۍ کې یو هېواد هم کله دبل هېواد کب نیونکي پدې ندي محاکمه کړي چې ولې یې اوبو ته رانوتي دي ؟

سیسي په ټول هېواد کې دمسجداقصی په عکس بندیز لګولی دی ،نه یې څوک په اخبار یا مجلې کې نشرولی شي او نه یې هم په دیوال راځړولای شي ،څوک چې دا کار وکړي دتروریزم ضد محاکمو کې به محاکمه کېږي.

دمسجداقصی سره دا دومره زیاته دښمني په نړۍ یواځې دیهودو او د ((ایونجلیکل چرچ ))نومې عیسوي ډلې دی .

دجنرال السیسي همدا یهودیتوب ،اسلام دښمني او داسرائیلو سره روابط او ورته وفاداري وه چې اسرائیلو هغه خپل اتل ګڼلی و.

دسیسي په اړه دې نویو انکشافاتو دعربي نړۍ مسلمان ولسونه ډېر په تشویش کې اچولي دي خو څه ځکه نه شي کولای چې واکمنان پدې اړه چوپه خوله دي.

# مطالبۀ کمیسیون دعوت و ارشاد

## در مورد بیداری مردمی بر علیه امضای پیمان امنیتی با امریکا

از تمام علماء کرام، مدرسین ، خطیبان ، ملاامامان ، استادان پوهنتون ها ، معلمان ، ریش سفیدان ، متنفذین قومی ، قومندانان جهادی، نویسندگان ، شاعران ، شخصیت های علمی ، چهره های جهادی ، ژورنالیستان و از تمام مسئولین جهادی امارت اسلامی در خواست می کنیم که بخاطر دفاع از دین ، اسلام و کشور شان ، در مورد لوی جرگۀ جعلی و در مورد اضرار پیمان امنیتی با امریکا ، با استفاده از جایگاه شان به ملت افغان آگاهی بدهند ؛ مردم را در خطبه ها ، مجالس ، نشست ها و در تمام تماس ها به عواقب خطرناک این پیمان متوجه نمایند ؛ در این مورد ذهنیت عمومی را روشن نموده و افغان ها را در این رابطه از رهنمود های دینی شان با خبر سازند ؛ به منافع علیای کشور توجه نموده توجه مردم را به اسباب طولانی شدن این جنگ معطوف نمایند ، امضای پیمان امنیتی با امریکا همانند پیمان نمودن با حیوانات وحشی جنگل است که به هیچ ارزش انسانی پایبند نبوده و به ارزش ها و اصول دینی باورد نداشته و نه هم به آن ارزش قائل اند .

هدف امریکایی ها زیرکردن تمام ملت ها در این دنیا و آوردن آنان در تحت سیطرۀ خود می باشد ،در هر صورت منافع مادی برای امریکا اولویت دارد ، اگر کشور دین ، ثقافت ، فرهنگ ، رواج ، شیرازۀ اقتصادی و حتی موجودیت کدام کشور با منافع امریکا در تضاد واقع شود و به مرحلۀ تقابل برسد ، امریکایی ها ابائی برای نابودی این همه ندارند و برای آن آماده اند .

ما باید به گذشتۀ ۱۲ سالۀ اشغال و تجاوز امریکا به کشور مان بنگریم که چه قدر افغان ها را با نام های مختلف با دین شان دشمن کردند ، پردۀ حیا و عفت شان را دریدند ، کلتور غیر اسلامی و خارجی را ترویج کردند ، برای نابودی تمام نهاد های تعلیمی ، اقتصادی و وحدت افغانستان واحد ،

پول های بسیار گزاف و دسیسه های شان را بکار گرفتند ، مردم را به نام تعلیم از دین شان دور نموده و با مفکورهٔ غربی آنان را پرورش دادند ، در تجارت و معامله ها ، به تبدیلی فرهنگ و تعمیم سود و رباء سرمایه گذاری کردند ، برای از بین بردن معاشرهٔ گرانقدر افغانی و اسلامی ، از موقف زنان ، به نام اعاده حقوق زنان استفاده بد و نادرست کردند که در طی آن بدبینی میان خانواده ، کشتار زنان ، ، راندن زنان از خانه و حتی فرهنگ خودکشی را برای زنان ایجاد کرده وآن را وسعت دادند .

سلسلهٔ جرم و جنایت را از شهرها تا قری و قصبات افزایش دادند ، مردم را بوسیلهٔ دالر و پروگرام های فحشاء ، از اخلاق اسلامی بیگانه کردند ، برای از هم پاشیدن وحدت ملت و بی اتفاق کردن آنان ، در میان مردم اختلافات قومی ، لسانی ، سمتی و نژادی و بدبینی را عام کردند و از راه میدیا آن را گشترش داده و می دهند .

اگر با این جنایت کاران و شیطان صفتان این گونه پیمانی هم داشته باشیم، شما چه فکر می کنید که پس از چند دهه در کشور چیزی به نام اسلام و مسلمان باقی خواهد ماند ؟ امیدواریم که تمام جهات مسئول و افراد در این مورد عمیقا فکر نمایند و در حد توان در مقابل آن مبارزه نمایند .

به آن عده از جاهلان و نا اهلان که برای همچو پیمانی با امریکا زمینه سازی می کنند ، آن را می پسندند و در راستای منافع کشور قلمدادش می کنند ، به آنان فرصت باید ندهیم که کشور ما را در دام کفر گرفتار کرده و ذلت را در دنیا و آخرت برای افغان ها به ارمغان بیاورند .

امارت اسلامی به تمام ملت اطمینان می دهد که پس از راندان اشغالگران ، در کشور خود نظام اسلامی ، امنیت خوب ، زندگی مرفه و فضای برادری و صمیمیت و خوشحالی خواهیم داشت ، ان شاء الله تعالی

والسلام

ازطرف کمیسیون دعوت و ارشاد امارت اسلامی افغانستان

۱۴۳۵/۱/۱۷هـ ق

۱۳۹۲/۸/۲۹